# د قیامت علامات

د احادیثو عصری تطبیق
دعوت فکر د عمل لارې
عجیبه انکشافات او
نا آشنا معلومات

دجّال ......... مهدی ......... عیسٰی علیه السلام

مؤلف

فضیلة الشیخ ابو محمد امین الله البشاوری
حفظه الله تعالیٰ



مکتبه محمدیه

بیرون گنج گیٹ منگل مارکیٹ پیښور
0301-8828402

د احادیثو عصری تطبیق، دعوت فکر د عمل لارے
عجیبه انکشافات او نا آشنا معلومات

# د قیامت علامات
# دجّال مهدی عیسیٰ علیه السلام

د کتاب نوم ــــــ علامات قیامت، مهدی، عیسیٰ علیه السلام او د دجال تفصیلی حالات

مؤلف ــــــــ الشیخ امین الله البشاوری حفظه الله

اضافه ــــــــ ابوزهیر سیف الله البشاوری غفر له

سنه طباعت ــــــ (جمادی الاولیٰ ۲۵، ۱۴۳۱ھ)

موافق: ۲۰۱۰/۵/۷) بوم الخمیس

دویم ځل طباعت ــــــ ۲۹/ ۱۲/ ۱۴۳۱ ھ

۲۰۱۰ء

**مکتبه محمدیه**

پهندو روډ ګنج منګل مارکیټ پیښور پاکستان

# فهرست کتاب (علامات قیامت)

مضمون | صفحه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَخْبَرَنَا بِمَا یَنْفَعُنَا وَمَا یَضُرُّنَا فِی الدُّنْیَا وَیَوْمَ یَقُوْمُ الْحِسَابُ، وَبَیَّنَ لَنَا طُرُقَ النَّجَاةِ مِنَ الْعَذَابِ فِی السُّنَّةِ وَالْکِتَابِ وَخَوَّفَنَا مِنْ یَوْمٍ لَارَیْبَ فِیْهِ وَلَا اِرْتِیَابَ یَوْمَ لَایَنْجُوْ فِیْهِ اَحَدٌ اِلَّا اُولُوا الْاِیْمَانِ وَالْاَلْبَابِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ عَالِی الْجَنَابِ الَّذِیْ سَعٰی وَبَذَلَ الْجُهْدَ لِاُمَّتِهٖ فِی الدُّنْیَا وَیَوْمَ الْمَآبِ وَعَلٰی آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَتْبَاعِهٖ بِصِدْقٍ وَاِیَابٍ، اَمَّا بَعْدُ :

الله تعالیٰ رب العالمین قادر په هر یو شی او عالِم او خبردار په ټولو کائناتو دے، هر یو شے د هغه په لاس، قدرت او قبضه کښې دے، څوك د الله تعالیٰ نه پټیدے نهٔ شی، او نهٔ څوك د هغه نه تختیدے شی، که ټول مخلوق په خپل رحمت کښې داخل کړی، نو دا به د هغه إحسان وی او که ټول په عذاب کړی نو دا به د ظلم کار نهٔ وی، بلکه دا به عین عدل او انصاف وی، ځکه چه دا کائنات ټول د الله جل شانه غلامان او مامور ان دی، او الله سبحانهٔ لیدونکے دے، اَوریدونکے دے، خپل بندګان وینی او د هغوی خبرے اَوری۔ بس حساب د هغه په لاس کښې دے، څوك بخښی او چا لره عذاب ورکوی، او همدارنګه الله رب العزت حکمت والا دے، دنیا کښې

څوك په ایمان او تقویٰ سره عزتمند او شرافت والا ګرزوی، او په آخرت کښ په خپل حسابِ یسیر (آسان حساب) او په دیدارِ الهی او په دخول د جنت سره۔

او څوك ذلیله کړی په کفر، دهریت، شرك، فسق او فجور سره، ځکه چه عزت او ذلت د الله جل شانه په قدرت کښ دے، او همدارنګه الله جل شانه خالق د آسمانونو او زمکو او د عرش، کرسی او د جنت او دوزخ دے، دریابونه، غرونه، بارانونه، ونې بوتی، کانړی، شګے، خاورے، انسانان، پیریان، ملائك بلکه هر وُچ او لُوند او هرتور سپین، او هر قوی او ضعیف الله پیدا کړی دی. بلکه اعراض د انسان هُم الله تعالیٰ پیدا کړی دی او الله جل شانه هر شے جوړه جوړه پیدا کړے دے۔

لکه قرآن کریم وائی : ﴿ وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴾ [الذاریات :٤٩] (او هر شے مونږ جوړه جوړه پیدا کړیدے، ستاسو د نصیحت دپاره)۔

لکه علماء وائی چه په هره وُنه، بوټی کښ نر او ماده شته، په ګیاه ګانو کښ هم شته، آسمان له جوړه زمکه ده، جنت له جوړه جهنم دے، سړی له زنانه ده، هر حیوان کښ نر او ماده شته پس دنیا له هم جوړه او ملګرے پکار دے او هغه نۀ دے مګر قیامت دے، او ورځ د حشر ده، چه دا به د دنیا د فناء نه بعد شروع کیږی نر لکه څنګه چه د نر شرافت دے په ماده باندے، نو دغه شان د آخرت شرافت او عزت به په دُنیا [illegible] زیات دے، پس انسان له د دغه

ورځې دپاره ډیر غم او فکر پکار دے او همیشه یادول ئے او نۀ هیرول
ئے لازم دی۔
زمونږ ددے رسالے مقصد هم دا دے چه مونږ ته او عامو خلقو ته
د مصیبتونو او تکلیفونو دغه ورځ یاده شی او د هغې دپاره تیارے
وکړو۔

## عقلِ سلیم

وائی چه قیامت ولے راشی :
څکه چه دنیا کښې هر کس عملونه کوی او مشقت تیروی،
څوك د الله تعالیٰ په رضا کښې مصروف وی او د رسول الله ﷺ په
تباع کښې خپله زندګی تیروی او د خپل خواهش خلاف کوی او
بعضِ کسان په دنیا کښې مُنْهَمِك او غرق شوی وی، او اعمال د
خپلے رضا او خواهش مطابق کوی، لکه دُنیا کښې ایمان والو ته
وګوره او مشرکانو کافرانو ته اُوګوره، او متقیانو ته توجه اوکړه او
فاجرانو ته اُوګوره چه هر سړے روان دے په یوه لاره۔ پس دوی له یو
داسے وخت پکار دے چه د دوی په کښې جدائی راشی، او فیصله
وشی، او دا د الله تعالیٰ د عدل تقاضا ده، نو هغه وخت ورځ د آخرت
و د قیامت ده چه فیصلے به پکښې کولے شی، لکه دا مطلب قرآن
کریم په سورة صٓ کښې واضح کړیدے :
﴿ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ، ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ
كَفَرُوْا ، فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ﴾ (ص۲۷)
(او مانۀ دی پیدا کړی آسمان او ځمکه او هغه چه په مینځ د ددے

کښې دی باطل او عبث، دا گمان د کافرانو دے، پس داسے خلقو له تباهی ده د اُور نه)۔

دارنګه ارشاد دے : ﴿اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ﴾ (ص:٢٨)

(آیا مونږه گرزوو هغه کسان چه ایمان ئے راوړے او نیك عملونه ئے کړیدی په شان د هغه کسانو چهه فساد کونکی دی په زمکه کښې آیا مونږه گرزوو متقیان (پرهیزگاران) په شان د بد کارانو) یعنی مونږ چرے هم داسے نهٔ کوو۔

او سورهٔ نجم کښې راځی : ﴿لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اَسَاءُوْا بِمَا عَمِلُوْا وَيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا بِالْحُسْنٰى﴾ (النجم: ٣١)۔

(دے دپاره چه بدله ورکړی هغه کسانو ته چه بدی کړیده د هغوی د عمل او بدله ورکړی هغه کسانو ته چه نیکی کړیده نیکه بدله)

یعنی قیامت به الله تعالیٰ دے دپاره راولی چه بد عملونو والو ته د بدئ جزاء ملاؤ شی او نیك عملونو والو ته د نیکئ۔

او بل ددے وجه نه چه کافرانو او مشرکانو ته پته اُولګی چه مونږ په غلطه لار روان وو، او ایمان والو ته ښکاره شی چه الله پاك چه کومه خبره کړے وه هغه رشتینے او سچ ده۔

٥٥٥٥٥٥

## د قیامت د ورځې نومونه

د قیامت د ورځې تقریباً دوه دیرش (۳۲) نومونه دی، قرآن او حدیث کښې راغلی دی:

(۱) يَوۡمُ الۡقِيٰمَة: یعنی قائمیدونکې ورځ.

(۲) السَّاعَة: یعنی زر به قائمه شی په یو ساعت کښې.

(۳) يَـوۡمُ الۡحَسۡـرَة: (د افسوسونو ورځ) ځکه چه قیامت کښې به کافران او مؤمنان ټول افسوس کوی، کافر به په ایمان پسې او مؤمن په نیك عملونو پسې.

(٤) يَوۡمُ الدِّيۡن: (د جزاء ورځ).

(٥) الۡآخِرَة: (آخری ورځ).

(٦) يَوۡمٌ عَظِيۡمٌ: (غټه ورځ).

(۷) يَوۡمٌ كَبِيۡرٌ: (لویه ورځ).

(۸) يَوۡمٌ مَشۡهُوۡدٌ: (ورځ د ګواهانو د ګواهئ)

(۹) يَوۡمُ الۡبَعۡثِ: (ورځ د دوباره ژوند).

(۱۰) يَوۡمُ الۡفَتۡحِ: (ورځ د فیصلې).

(۱۱) يَوۡمُ الۡفَصۡلِ: (ورځ د جدایئ).

(۱۲) يَوۡمُ الۡحِسَابِ: (ورځ د حساب).

(۱۳) يَوۡمُ التَّلَاق: (ورځ د ملاقات د انسان د جزاء د خپلو عملونو سره).

(۱٤) يَوۡمُ الۡآزِفَة: (ورځ نږدې).

(١٥) يَوْمُ التَّنَادِ : (ورځ د آوازونو) لکه اُور والا به جنتيانو ته آوازونه کوي چه لږه روتۍ يا اُوبه خو راکړئ، هغوي به ورته آواز اُوکړي چه دا په مشرك او کافر باندے الله منع کړي دي۔

(١٦) يَوْمُ الْجَمْعِ : (ورځ د راجمع کيدو)۔

(١٧) يَوْمٌ اَلِيْمٌ : (ورځ دردناکه)۔

(١٨) يَوْمُ الْوَعِيْد : (ورځ د عذابونو)۔

(١٩) يَوْمُ الْخُلُوْد : (ورځ د هميشه والي)۔

(٢٠) يَوْمُ الْخُرُوْج : (ورځ د وتلو د قبرونو نه)۔

(٢١) اَلْوَاقِعَة : (واقع کيدونکے)۔

(٢٢) يَوْمُ التَّغَابُن : (ورځ د نقصان ښکاره کيدو)۔

(٢٣) اَلْحَاقَّة : (حق ورځ)۔

(٢٤) اَلْقَارِعَة : (ټنګونکے ورځ)۔

(٢٥) يَوْمٌ عَسِيْرٌ : (سخته ورځ)۔

(٢٦) يَوْمٌ عَبُوْسٌ : (ورځ د تندي تريو کيدلو)۔

(٢٧) يَوْمٌ ثَقِيْلٌ (درنه ورځ)۔

(٢٨) اَلْيَوْمُ الْحَقّ : (رشتينے ورځ)۔

(٢٩) اَلطَّامَّةُ الْكُبْرىٰ (د لوئي مصيبت ورځ چه انسان چاړا کوي)۔

(٣٠) اَلصَّاخَّةُ : (کنړونکے ورځ)۔

(٣١) اَلْغَاشِيَة : (پټونکے ورځ، انسان له په عذاب کښې)۔

(٣٢) اَلْيَوْمُ الآخِرُ : (روستنۍ ورځ)۔

## قرآن کریم کښې د شپږو خبرو ذکر :

د شپږو خبرو ذکر په قرآنِ حکیم کښې ډیر په تفصیل سره راغلے دے، زهٔ مختصر هغه ذکر کوم :

(۱) — مسئله د توحید ده : چه د الله تعالیٰ په ذات باندے یقین جوړول دا ضروری څیز دے، او د مخلوق نه خپل یقین کټ کول پکار دی، که ملائك وی، که پیغمبران وی، که اولیائے کرام، بزرګان، او که پیران وی چه دوی هیڅ اختیار د اُلوهیت او رُبوبیت د الله تعالیٰ په بادشاهئ کښې نهٔ لری۔

(۲) تصدیق د رسول : چه محمد رسول الله ﷺ رشتینے پیغمبر اُوګنړئ۔

(۳) جهاد فی سبیل الله : د دغه مسئلے د توحید دپاره او ددے د اِشاعت دپاره جهاد کول د الله تعالیٰ د رضا دپاره۔

(٤) اِنفاق فی سبیل الله : د دغه مسئلے د خورولو دپاره خپل مال خرچ کول د الله تعالیٰ په لاره کښې۔

(٥) تصدیق د قرآن : چه قرآن رشتینے کتاب اُوګنړئ او په دے کښې د کمی او زیاتی نه ځان بچ کړئ او د قرآن په باره کښې د غلطو خلقو په شان عقیده اُونهٔ ساتئ۔

(٦) په قیامت ایمان راوړل : او هغه رشتینے او صادقه ورځ ګنړل چه الله پاك به په هغے کښې د خپلو بندګانو سره حساب کوی، څو به بخښی، او څوك به عذاب ته وړاندے کوی۔

اګرچه ورځ د قیامت حق او رشتینې ده، خو بیا هم رسول الله ﷺ د هغې علامات او نښې نښانې فرمائیلي دي، او خپل امت ته ئې خودلي دي، دې دپاره چه د هغوی د دغه ورځې نه یره پیدا شي، او د هغې دپاره تیارې اوکړي، او ځان د عذاب نه محفوظ کړي ځکه چه رسول الله ﷺ په خپل اُمت ډیر شفقت لري، نو دوی هغه څیزونه په تفصیل سره بیان کړیدي کوم شیان چه اِنسان په تکلیف او مشقت کښې اَچوي، خصوصاً د آخرت سره چه تعلق لري هغه ئې ډیر بیان کړي دي ځکه چه د آخرت څه انتهاء نشته، نۀ ختمیدو والا زمانه ده، او دنیا خو لږې شپې ورځې دي، ډیرې معمولي دي۔

هرکله چه دا دومره عظیمه او درنه ورځ ده نو ددې نښې یاد لرل پکار دي چه که هغه رابنکاره شي نو انسان له څه کول پکار دي ؟۔

لهذا زۀ به اُوس په دې رساله کښې د قیامت بعضِ علامات ذکر کوم هغه ډیر په سوچ سره کتل پکار دي، که ددې علاماتو نه بعض ستا په زمانه کښې موجود وي، نو سخته یره پکار ده، لکه زۀ به په بعضو باندې -اِن شاء الله- تنبیه ورکوم چه مثلاً دا نښه او علامه زمونږ پدې زمانه کښې موجوده شویده۔

اول به واړه علامات ذکر کیږي بیا به غټ علامات.

oooooooooo

## (۱) اوله علامه : وینزه به خپل مالکه زیږوی :

دا عـلامه په حديث د جبريل ﷺ کښې راغلې ده، اوږد حديث دے د فـائـدے دپاره ټـول ذکـر کـولے شـی پـه هغے کښې ورسره درے نور علامات هم دی :

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ﷺ قَالَ : بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ ذَاتَ يَوْمٍ اِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيْدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ، شَدِيْدُ سَوَادِ الشَّعْرِ، لَايُرٰى عَلَيْهِ اَثَرُالسَّفَرِ وَلَا يَعْرِفُهٗ مِنَّا اَحَدٌ حَتّٰى جَلَسَ اِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَاَسْنَدَ رُكْبَتَيْهِ اِلٰى رُكْبَتَيْهِ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلٰى فَخِذَيْهِ وَقَالَ : يَا مُحَمَّدُ ! اَخْبِرْنِيْ عَنِ الْاِسْلَامِ ؟ قَالَ: «اَلْاِسْلَامُ اَنْ تَشْهَدَ اَنْ لَا اِلٰـــهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ وَتُقِيْمَ الصَّلٰوةَ وَتُؤْتِيَ الزَّكٰوةَ وَتَصُوْمَ رَمَضَانَ وَتَحُجَّ الْبَيْتَ اِنِ اسْتَطَعْتَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا» قَالَ: صَدَقْتَ. فَعَجِبْنَا لَهٗ يَسْأَلُهٗ وَيُصَدِّقُهٗ. قَالَ : فَاَخْبِرْنِيْ عَنِ الْاِيْمَانِ؟ قَالَ: «ان تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَتُؤْمِنَ بِالْقَدْرِ خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ» قَالَ: صَدَقْتَ. قَالَ: فَاَخْبِرْنِيْ عَنِ الْاِحْسَانِ؟ قَالَ: «اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ» قَالَ:فَاَخْبِرْنِيْ عَنِ السَّاعَةِ ؟ قَالَ: «مَاالْمَسْئُوْلُ عَنْهَا بِاَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ» قَالَ : فَاَخْبِرْنِيْ عَنْ اَمَارَاتِهَا؟ قَالَ : «اَنْ تَلِدَ الْاَمَةُ رَبَّتَهَا وَاَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُوْنَ فِي الْبُنْيَانِ»قَالَ: ثُمَّ انْطَلَقَ فَلَبِثْتُ مَلِيًّا ثُمَّ قَالَ لِيْ : «يَاعُمَرُاَتَدْرِيْ مَنِ السَّائِلُ؟ » قُلْتُ:اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ. قَالَ : «فَاِنَّهٗ جِبْرِيْلُ اَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِيْنَكُمْ »رواه مسلم- ورواه ابوهريرة مع اختلاف وفيه:«وَاِذَا رَاَيْتَ الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الصُّمَّ الْبُكْمَ مُلُوْكَ الْاَرْضِ فِيْ خَمْسٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ قَرَأَ : ﴿ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ﴾ »الآية متفق عليه۔

**ترجمه** : سیدنا عمر فاروق ﷺ فرمائی: یو ځل مونږ د رسول الله ﷺ سره (ناست) وو چه ناڅاپه رابنکاره شو په مونږ باندے یو سړے چه تکے سپینے جامے ئے وے او تك تور ویښته ئے وو، په هغه باندے اثر د سفر نهٔ ښکاریدو، او په مونږ کښے هغه لره هیچا هم نه پیژندو تردے چه هغه نبی ﷺ ته مخامخ کیناستو، او خپل دواړه زنګنونه ئے د نبی ﷺ زنګنونو ته اُولګول، او خپل دواړه لاسونه ئے په خپلو پتنونو(یا د هغه په پتنونو) کیخودل او عرض ئے اُوکړو، اے محمد ! خبر راکړه ما ته په باره د اسلام کښں؟۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : اسلام دا دے چه ته دا ګواهی اُوکړے چه نشته لائق دعبادت سیوا د الله نه او محمد (ﷺ) د الله رسول دے، او پابندی د مانځه کوے او زکوٰة ورکوے اود رمضان روژے نیسے اود بیت الله حج اُوکړے که طاقت دے وی هغے ته د لارے، هغه اُووئیل : رشتیا دے اُووئیل (صحابهٔ وائی) مونږ تعجب اُوکړو د هغه نه چه تپوس هم ترے کوی او تصدیق ئے هم کوی۔ هغه اُووئیل : خبر راکړه ماته په باره د ایمان کښں، ورته ئے اُوفرمائیل : چه ایمان راوړے په الله اود هغه په ملائکو اود هغه په کتابونو اود هغه په رسولانو او په ورځ د آخرت اُوپه تقدیر د خیر او د شر، هغه اُووئیل : رشتیا دے اُووئیل، بیا هغه اُووئیل : ماته خبر راکړه په باره د احسان کښں ؟، نبی ﷺ ورته اُوفرمایل : چه ته د الله داسے عبادت اُوکړے لکه چه ته ورته ګورے، او که ته ئے نهٔ وینے نو (دا یقین اُوکړه چه) هغه خو دے وینی، هغه اُووئیل : ماته د قیامت په باره کښں خبر راکړه، وے

فرمائیل: نه دے هغه کس چه تپوس ترینه کړے شویدے ډیر پو هه د تپوس کونکی نه۔ (یعنی زه تا نه خه نهٔ پو هیږم یعنی تا ته هم پته نشته او نهٔ ماته) وے وئیل : ما د هغے دعلاماتو نه خبر کړه ؟، ورته ئے اُوفرمایل : چه وزیګوی وینځه مالکه خپله او چه اووینے ته خپے ابیله خپو والا بربنډ، فقیران او ګډے بیزے څرونکی چه فخر به کوی په آبادی کولو کښې، راوی وائی چه بیا روان شو هغه سړے اوما درنګ تیر کړو ډیر وخت، بیا ماته نبی ﷺ اُوفرمائیل : اے عمر ! آیا تاته پته شته چه دا سوال کونکے څوك وو، ما عرض اُوکړو، الله اورسول ښه پو هیږی، وے فرمائیل : دا جبریل وو تاسو ته دے دپاره راغلے وو چه تاسو ته ستاسو دین دراوښائی۔ دا حدیث مسلم روایت کړیدے۔ اودا حدیث ابو هریرهؓ روایت کړیدے سره دځه اختلاف نه، او په دے کښې دا دی : چه کله ته خپے ابیله خپو والا بربنډ کانړه چاړا ګان اُووینے چه د زمکے بادشاهان جوړ شویدی، (دقیامت عِلم) په هغه پنځو څیزونو کښې دے چه هغه د الله نه سیوا بل هیچا ته معلوم نهٔ دی، بیا ئے دا آیت اولوستلو : یقیناً الله سره علم د قیامت دے او هغه باران ورو ی تر آخر دآیت پورے۔

(بخاری او مسلم)۔

پدے حدیث کښې یوه علامه د قیامت دا بیان شوه چه د وینزے نه به سیده (مالکه) پیدا شی۔

ددے ډیر مطلبونه دی : یو مطلب دا چه لُور به په مور باندے داسے امر کوی او خدمت به ترے اخلی لکه څنګه چه ښځه د خپلې

خادمے او وینزے نه خدمت اخلی او امر پرے کوی۔ یعنی حالاتو کښې به داسے تبدیلی راشی د کشر او مشر پته به نهٔ لګی، د مشرانو بے عزتی به شروع شی۔

## (۲) دویمه علامه: په آبادیانو به فخر شروع شی

په دے حدیث کښې دا خبره راغله چه داسے وخت به راشی چه تهٔ به خپے اَیبله خلق او برېنډ او د ګډو بیزو شپونکیان (څرونکی) وینے چه د یو بل نه به په آبادو کښې د فخر په طریقه اُوچت والے کوی۔

## ۳- دریمه علامه :

داسے خلق به د زمکے بادشاهان جوړ شی چه هغه به خپے اَیبله او برېنډ او کانړهٔ وی او د حق نه ګونګیان وی نو دا د قیامت د علامه ده۔ لکه دا هم په دغه حدیث کښې ذکر شو۔

بس اُوس سوچ اُوکړه چه آیا دا ټولے علامے نهٔ دی موجودے شوے، مونږ خپله داسے خلق لیدلی دی چه شپونکیان وو، غریب خلق وو، جامے او څپلۍ به ورته نهٔ ملاویدے، اُوس د یو کور په ځائے بے شماره کورونه لری۔ او همدارنګه د مور او پلار بے احترامی څومره زیاته کیږی۔

او همدارنګه بادشاهان او مشران او قاضیان او امامان زمونږ داسے خلق ګرزیدلی دی چه هغه نهٔ د الله تعالیٰ څه معرفت لری، او نهٔ د هغه د رسول او نهٔ د هغه د کتاب۔

لکه بل روایت د بخاری کتاب العلم کښې دی :

## ٤- څلورمه علامه : د امانت ضائع کیدل

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو مجلس کښې ناست وو، صحابه کرامؓ سره ئے خبرے کولے، یو بانډیچی سړے راغے او عرض ئے اُوکړو چه قیامت به کله وی؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل : [إِذَا ضُيِّعَتِ الْاَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ ، قال : وَكَيْفَ إِضَاعَتُهَا ؟ قال : إِذَا وُسِّدَ الْاَمْرُ إِلٰى غَيْرِ اَهْلِهٖ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ] [بخاری]

(کله چه امانت ضائع شی نو انتظار د قیامت کوه۔ نو هغه اُووئیل : د اَمانت د ضائع کیدو څه معنیٰ ده ؟ نو نبی علیه السلام اُوفرمایل : کله چه کارونه د دین نا اهله خلقو ته اُوسپارلے شی نو انتظار د قیامت کوه)۔

یعنی کله چه بادشاهی نا اهله خلق واخلی چه دین په کښې نهٔ وی، تقویٰ پکښې نهٔ وی، صرف دُنیا پیدا کول د هغه مقصد وی۔

او همدارنګه قضاوت، امامت، امارت، مشری نا اهل خلق واخلی لکه اُوس فکر اُوکړه، عام امامان په مسائلو د دین نهٔ پو هیږی، او نهٔ د صحیح عقیدے نه خبر وی۔ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللهُ۔

صرف یو څو سورتونه ئے یاد کړی وی د پیسو ګټلو دپاره۔ او مشران هم یا فاسقان او فاجران، یا غافلان د دین نه، یا ریاکاران دی۔ نو دا څلورمه علامه شوه۔

## ٥- علامه : د نشر واشاعت عام کیدل

## ٦- او تجارتونه عام کیدل

## ۷- او سلام په خاصو خلقو اچول:

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ اُوفرمایل: (( إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ تَسْلِيمَ الْخَاصَّةِ وَفُشُوَّ التِّجَارَةِ حَتَّى تُعِينَ الْمَرْأَةُ زَوْجَهَا عَلَى التِّجَارَةِ وَقَطْعَ الْأَرْحَامِ وَشَهَادَةَ الزُّورِ وَكِتْمَانَ شَهَادَةِ الْحَقِّ وَظُهُورَ الْقَلَمِ))

(مسند احمد ۱/٤٠٧، ٤٠٨) السلسلة الصحيحة: (٦٤٧)

(قیامت ته نزدے به صرف په خاصو خلقو سلام اچولے شی، تجارت به دومره خور او عام شی چه ښځه به په تجارت کښ د خپل خاوند سره مدد کوی او صله رحمی به پریکړے شی او د دروغو گواهی به ورکولے شی او حق به پټولے شی او قلم به راښکاره شی)۔

مطلب دا دے چه سلام به صرف په هغه خلقو اچولے شی چه د هغوی نه یره کولے شی یا هغه کسانو باندے چه پیژنی ئے یا ئے ترے څه طمع او لالچ وی۔

او تجارتونه به دومره عام شی چه ښځے به هم خاوندانو سره په تجارت کښ تعاون کوی او ښځے به خاوندانو ته حکم کوی چه تجارتونه اُوکړی او اسباب او لارے به ورله برابروی۔ که مونږ فکر اُوکړو نو دا علامه بالکل رشتینی شویده ځکه چه اکثرے ښځے د سړو سره په کاروبارونو کښ شریکے شویدی او په یو ځائے ورسره ډیوټی کوی او خاوندانو دپاره لارے د تجارت همواروی۔ بل طرف ته د صله رحمی اندازه هم اُولګوه چه په معمولی کارونو هغه پریکولے شی او دومره مصروفیات د خلقو زیات شویدی چه په کلونو کلونو د خپلوانو ملاقاتونه ته اُوزګار نهٔ دی۔

د دروغو د گواهئ خو څه انتهاء نشته او د حق گواهی پټول خو خلقو ته کمال ښکاری او دا ورته سیاست او موقعه شناسي ښکاری۔
او د قلم ښکاره کیدو مطلب دا دے چه د قلم په ذریعه به نشر او اشاعت عام شی او کتابونه به ډیر اُولیکلے شی لکه که اُوس اُوکتلے شی چه د کتابونو کتونکی کم دی او کتابونه زیات دی۔ هر سړی قلم راپورته کړیدے او لیکل ئے شروع کړیدی چا د خیر او چا د شر لیکل کړیدی۔

## ۸- علامه : شراب به سکلے شی

انس بن مالك رضی الله عنه د نبی ﷺ نه ارشاد نقل کوی :
«لَيَكُونَنَّ فِي هٰذِهِ الْأُمَّةِ خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَمَسْخٌ وَذٰلِكَ إِذَا شَرِبُوا الْخُمُورَ وَاتَّخَذُوا الْقَيْنَاتِ وَضَرَبُوا بِالْمَعَازِفِ» (صحيح الجامع ٥٤٦٧)
(خامخا به پدے امت کښں په زمکه داخلیدل او د کاڼړو باران او د شکلونو بدلیدل راځی او دا به په هغه وخت کښں وی چه کله دوی شرابونه څکل شروع کړی او ډمے گډوَل خپل خوئی جوړ کړی او تنبل او باجے او سورنا او گانے بجانے اُووهی)۔
دا علامه د قیامت هم د ډیر مخکښں دور نه موجوده شویده۔ د شرابو او ډمتوب خو څه حد نشته۔ خلق ورته موسیقی او د روح غذاء وائی حال دا چه دا د عذابونو او د کاڼړو د باران او د شکلونو د مسخ کیدو او په زمکه د داخلیدو سبب دے۔
افیون، چرس، تونال، پوډر، نسوار او نورے نشے په کافرانو کښں

څهٔ چه مسلمانان ترے هم خلاص نهٔ دی۔

۹- **علامه** : ډمے او بد کارے ښځے او تهنګ تکور به ښکاره شی۔ لکه په مخکنی حدیث کښ ذکړ شوه۔

سبحان الله ! دے علامے ته خو خصوصاً ډیر فکر اُوکړه چه څومره ډمے، او ډمے لا څهٔ چه دا نورے ښځے د ډمونه زیاتے بے حیاء دی، دا به روستو راشی ان شاء الله۔ ریډوان، تی وی، وی سی، آر، ټیپونه، فلمونه او نور څیزونه دی چه مونږ له ئے نومونه هم نهٔ راځی، دا ټول د ګمراهئ او د تباهئ اسباب دی۔

زهٔ وایم : کوم کور کښ چه تی وی وی، د هغه کور تباه دے، راتلونکے نسل دے څیزونو هلاك کړو، دا خبره ډیر تفصیل غواړی، لیکن د فکر نه کار اخستل پکار دی۔

## ۱۰- لسمه علامه : د علم ختمیدل :

انس رضی الله عنه فرمائی: [سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ اِنَّ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ يُّرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَكْثُرَ الْجَهْلُ وَيَكْثُرَ الزِّنَا وَيَكْثُرَ شُرْبُ الْخَمْرُ وَيَقِلَّ الرِّجَالُ وَيَكْثُرَ النِّسَاءُ حَتّٰى يَكُوْنَ لِخَمْسِيْنَ امْرَأَةً الْقَيِّمُ الْوَاحِدُ] (اخرجه الشيخان)

(ما د رسول الله ﷺ نه ارشاد اوریدلے دے چه فرمایل ئے: د قیامت بعض علامات دا دی چه :

(۱۰) - علم به ختم شی۔

(۱۱) او جهل به ډیر شی۔

او دا دواړه علامے نن موجودے دی۔ علم د دین په ډیرو کمو

کسانو کښې پاتے دے، زنانه خو ترے بالکل محرومه شوی دی الا من شاء الله۔ او اکثر سړی داسے دی چه کلمه د توحید هم په صحیح طریقه نۀ ورځی، پاتے لا نور مسائل، خپله عقیده او ایمان نۀ پیژنی، او ناپوهئ دومره ترقی کړیده چه څۀ حساب نۀ لری۔ وَاِلَی اللهِ الْمُشْتَکیٰ۔

## (۱۲) علامه : د زنا زیاتیدل

او دائے هم فرمائیلی دی : چه زنا به ډیره شی۔
سبحان الله ! نن صبا اُوګوره تو له دُنیا کښې داسے ملك نشته چه هغے کښې عفت وی او ستر او پرده وی، اګرکه د مسلمانانو ملکونه دی، د زنا اَډے شته، چکلے شته، په کلو کښې هم او په باندو کښې هم، ښار خو په ځائے پریده۔ کچرته بازار ته لاړے نوکه ډیر متقی سړے وی هم به د ګناه نه بچ نۀ پاتے کیږی، د نظر په زنا کښې پریوزی، زنا د خولے هم شته، چه هغه غلطے فاحشے خبرے دی، او د غوږونو زنا هم شته او هغه د پردو محرماتو خبرے په شهوت سره اوریدل دی او د سترګو زنا هم شته او هغه اجنبیاتو ته کتل دی، او دا خو ډیر واقع دی۔ او زنا د فرج هم شته۔ قرآن او حدیث د زنا په باره کښې ډیر تاکید کړیدے او سورتِ نُور خاصکر د عفت او د پاکدامنئ دپاره نازل شویدے، خپلو زنانو ته د هغه سورت تعلیم ورکول ضروری دی، لکه عائشه رضی الله عنها فرمائی : چه سورة مائده دے سړی ښۀ یاده کړی ځکه چه دے سورت کښې د حرامو او د

حلالو مسئلے دی او سورۃ نور دے زنانه یاد کړی ځکه چه دے سورت کښ د عفت مسئلے دی۔

(۱۳) **علامه** : سړی به کم شی۔

(۱٤) او زنانه به ډیرے شی، تردے چه د پنځوسو زنانو تدبیر به یو سړے کوی۔

(یا خو به ئے دا توله په نکاح اخستے وی دډیر جهل او ناپوهئ په وجه او یا به د دغه زنانو نورځوك تدبیر کونکے نهٔ وی، نو یو سړے به ورله تربیت کوی)۔

## ۱۵- د ظلم ډیریدل

## ۱۶- او زنانه بنکاره کیدل :

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : «صِنْفَانِ مِنْ اَهْلِ النَّارِ لَمْ اَرَهُمَا قَوْمٌ مَعَهُمْ سِیَاطٌ كَاَذْنَابِ الْبَقَرِ یَضْرِبُوْنَ بِهَا النَّاسَ،وَنِسَاءٌ كَاسِیَاتٌ عَارِیَاتٌ، مَائِلَاتٌ، مُمِیْلَاتٌ، رُءُوْسُهُنَّ كَاَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ لَایَرِحْنَ الْجَنَّةَ وَلَا یَجِدْنَ رِیْحَهَا وَاِنَّ رِیْحَهَا لَتُوْجَدُ مِنْ مَسِیْرَةِ كَذَا وَكَذَا». (رواه مسلم)

ابو هریره ﷺ فرمائی، رسول الله ﷺ فرمائیلی دی :

«دوه قسمه خلق دی زما په امت کښ چه تر اُوسه پورے ما نهٔ دی لیدلی (یعنی آخزی زمانه کښ به راشی او هغوی به اُور د جهنم ته ځی)۔ یوه ډله داسے ده چه دوی سره به چابکونه وی لکه د غویانو د لکیو په شان او خلق به پرے (ظلماً) وهی (زهٔ وایم : دا ددے زمانے پولیس دی او نور ظالمان هم پکښ داخل دی، دا علامه موجوده

شوے ده)۔

او دويمـه ډلـه هغـه زنانـه دي چـه جامے بـه ئے اغوستی وي او بـربـنډے بـه وي، (يا خو بـه ئے نرئ جامے وي، يا بـه داسے وي چـه لاسـونـه او خيتـه او غاړه به ئے ښکاري، لکه اُوس مشاهده اُوکړئ، او يا دا چه جامے به ئے ډيرے وي ليکن د شکر نه به خالي وي، لکه چه نـن صبا زنانـه مونځ نهٔ کوي، الا من شاء الله)۔ پردو سرو ته به مائلے وي، او سړي به ځان ته مائله کوي، (او يا دا معنیٰ چه سرونه به په چَپه اَړوي، او نورو زنانو ته به هم پدے باندے حکم کوي)۔

سرونه به ئے په شان د قوبونو د اُوښانو وي، داسے سرونه چه مائل بـه وي يـو طـرف تـه د وجـه د لوړوالي نه۔ (يعنی داسے سرونه به ئے گمنـز کـړي وي چـه اُوچـت بـه ئے اړولي وي لکه د اُوښ دقوب په شـان)۔ داسے زنانه به د جنت بوئي نهٔ مومي او د جنت خوشبوئي د ډير لرے نه مونده شي» ۔ (صحيح مسلم)

نبي ﷺ چـه کـومـه پيشينـگـوئي کړے ده هغه نن زمانه کښ بـالـکـل رشتينے او صادقه شوے ده۔ او الله تعالیٰ ته معلومه ده چه روستو به لا څهٔ کيږي۔

## ۱۷- د يا جوج مأجوج ديوال کښ سورے کيدل :

عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ دَخَلَ عَلَيْهَا فَزِعاً يَقُوْلُ : لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ، فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوْجَ وَمَأْجُوْجَ مِثْلُ هٰذِهٖ] الحديث [متفق عليه]

زینب بنت جحش رضی الله عنها فرمائی : (یوه ورځ) ما کره رسول الله ﷺ راغے او ډیر د یَرے په حالت کښ وو، او دا کلمه ئے وئیله : نشته لائق د عبادت بل څوك سوا د الله نه، هلاکت دے د عربو دپاره ځکه چه عذاب رانزدے دے، نن ورځ د یاجوج او مأجوج په دیوال کښ دومره سورے کولاؤ شو او غتهه او مسواکئ ګوتے نه ئے حلقه جوړه کړه)۔

لا اله الا الله کلمه ئے ځکه وئیله چه ددے په وجه انسان د الله د عذاب نه بچ کیږی، او عرب ئے خاص ذکر کړل اګرکه عذاب به په نورو هم راځی ځکه چه اول اسلام دوی ته راغلے وو، بیا ئے اُوفرمایل : چه نن د هغه دیوال نه چه کوم ذو القرنین بادشاه یاجوج ماجوج ته وهلے وو، او د دوی د بندش دپاره ئے ساز کړے وو لکه دا واقعه قرآن مجید کښ په سورۀ کهف کښ بیان شویده، ددۀ په دغه دیوال کښ سورے شوے دے، او په ګوتو مبارکو ئے اِشاره اُوکړه۔

نو مطلب دا وو چه قیامت نزدے دے او نزدے ده چه یاجوج ماجوج راوزی، او الله تعالیٰ هغوی لره را آزاد کړی، نو هغه وخت به ډیر د عذاب ساعت وی۔ (نو زینبؓ اُوفرمایل : چه اے د الله رسوله ! آیا په مونږ به عذاب راځی پداسے حال کښ چه په مونږ کښ نیکان خلق هم وی؟، نبی علیه السلام اُوفرمایل : «آؤ، کله چه خباثت او ګناهونه ډیر شی »۔ دا دیوال په هغه زمانه کښ دومره سورے شویدے نو اُوس به څومره غټ وی هغه الله تعالیٰ ته معلوم دے۔

## ۱۸- د رسول الله ﷺ
## دنیا ته راتلل لویه علامه ده

انس رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:
«زهٔ او قیامت داسے یو بل ته نزدے او قریب یو لکه مینځو مئ او مسواکئ گوته چه یو بل ته قریب او نزدے دی»۔
په بل روایت کښ دی: رسول الله ﷺ اُوفرمایل: «زهٔ په وخت د ظاهریدو د قیامت کښ راغلے یم، لیکن زهٔ ترے لږ مخکښ شوم لکه دا گوته چه ددے بلے گوتے نه مخکښ ده، او اشاره ئے مسواکئ او مینځو مئ گوتے ته اُوکړه»۔

(ترمذی بروایة مستورد بن شدادؓ بسند صحیح)

قیامت تر هغه وخت پورے نهٔ قائمیدو ترڅو چه رسول الله ﷺ نهٔ وے راغلے اُوس چه کله رسول الله ﷺ دنیا ته راغلو نو د قیامت علامه موجوده شوه ځکه چه دا د الله جل شانه وعده وه او الله چرے هم د خپلے وعدے نه خلاف نهٔ کوی۔

## ۱۹- په دروغه د نبوت دعویٰ کول:

د ثوبان رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی:
«قیامت به تر هغه وخته پورے رانشی چه دیرش دروغجنان راونهٔ وزی، چه هریو به دا دعویٰ کوی چه زهٔ نبی یم، او د الله د طرفه رالیږلے شوے رسول یم»۔

[مسلم : الاحادیث الصحیحة (۱٦٨٣)]

لکه دا قسم خلق د نبی ﷺ د بعثت نه روستو ډیر پیدا شوی وو۔ د امیه بن الصلت هم دا خواهش وو چه زهٔ به ګنې آخری نبی یم څکه چه دا یو ښهٔ شاعر وو، خو هرکله چه رسول الله ﷺ د نبوت دعویٰ اُوکړه، نو هغه مرتد شو او قصداً ئے انکار اُوکړو۔

(کما فی مختصر سیرة الرسول والوفاء لابن الجوزی)

او همدارنګه مسلیمة الکذاب چه مشهور دے هغه هم د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د نبوت دعویٰ کړے وه، او د رسول الله ﷺ نه ئے دا درخواست کړے وو چه ته د خپل ځان نه روستو ما دپاره خلافت اُولیکه، نو رسول الله ﷺ ورته اُووئیل : چه که یو ډکے رانه غواړے هم نشته، او مړئے نکړو څکه چه هغه میلمنو کښې راغلے وو، بیا د ابوبکر صدیق په خلافت کښې د وحشی ﷺ په لاس مردار شو۔

او بل په هغه زمانه کښې اسود عنسی په صنعاء الیمن کښې ښکاره شوے وو، د رسول الله ﷺ چه کله د زنکدن وخت وو، نو دغه وخت کښې خبر راغے چه اسود عنسی فیروز الدیلمی ﷺ مردار کړو۔

بخاری شریف وغیره کښې د دوی واقعات راغلی دی۔

او همدارنګه مختار بن عبید الثقفی هم یو دروغژن ښکاره شوے وو، او د هغه متعلق رسول الله ﷺ پیشینګوئی ورکړے وه چه ثقیف قبیله کښې به یو کذاب (دروغجن) او یو مُبِیر یعنی

هلاکونکے پیدا کیږی، او همدارنګه په زمانه د مامون کښ دوه کسانو د نبوت دعویٰ کړے وه. او د متوکل بادشاه په زمانه کښ یوے ښځے د نبوت دعویٰ کړے وه او نور هم ډیر داسے دروغجن پیدا شوی وو، او طلیحه بن خویلد اسدی او ابوالعلاء المصری او ابو الطیب المتنبی او ابن المقفع هم دعویٰ د نبوت کړے وه.

یَو په کښ مرزا غلام احمد قادیانی (الکذاب) هم پیدا شوے وو، او بیا الله هغه په بیت الخلاء کښ مردار کړو ځکه چه علامه ثناء الله امرتسریؒ [اهلحدیث] ورسره مُباهله کړے وه، او د هغه مرزا بچی اُوس هم شته او خلق ګمراه کوی، نو د داسے دروغژنو نه ځان ساتل ضروری دی، بلکه رسول الله ﷺ آخری نبی دے او د هغه نه روستو هر څوك چه د نبوت دعویٰ کوی هغه به دروغ وائی.

## ۲۰ - دروغژنان به ډیر شی

د جابر بن سمره ﷛ نه روایت دے : [قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ : «إِنَّ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ كَذَّابِيْنَ فَاحْذَرُوْهُمْ» [رواه مسلم]

رسول الله ﷺ فرمائی : «د قیامت نه مخکښ به دروغژنان وی، ځان ترے اُوساتئ». د دروغژنانو نه څوك مراد دی ؟ یو خو په دروغه د نبوت دعویٰ کونکی مراد دی، لکه دا خبره مخکښ تیره شوه، او یا خو ترے هغه کسان مراد دی چه په رسول الله ﷺ د دروغو حدیثونه جوړوی، او هغه ته ئے نسبت کوی او یا ترے مبتدعین مراد دی چه غلطے عقیدے او اعمال به لری، او د هغے نسبت به

رسول الله ﷺ ته کوی، او دا خو نن صبا ډیر زیات دی۔
بریلیان هم د الله د نبی په باره کښ داسے غلطے عقیدے لری، هغه عالِم الغیب گڼری او حاضر ناظرئے گڼری او هغه ته غائبانه آوازونه کوی، یارسول الله ﷺ مدد شرکی آوازونه کوی او حال دا دے چه وائی دا د قرآن او حدیث نه ثابته عقیده ده، او جلسے او اجتماعات هم ددے دپاره کوی، او همدارنگه دا نور مشرکان هم په کښ داخل دی۔ چه په تکلیف او راحت کښ باباگانو له منډے وهی، او وائی چه زیارت له تلل سنت دی، مونږ وایو چه ټیك ده خو خاص یو بابا ته تلل نهٔ عامے مقبرے ته دا صحیح نهٔ دی دارنگه امداد ترے غوختل او د قبر کانړی او جاروګانے په ځان راخکل او په قبرونو شالونه غوړل او هلته شمعے بلول حرام دی۔ نو دا علامه هم موجوده شوے ده۔

## ۲۱- ډیر والے د مال:

د ابو هریره ﷺ نه ارشاد نقل شویدے چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلے دے چه «قیامت به تر هغے پورے نهٔ راځی چه ترڅو مال ډیر نهٔ شی، او دومره به ډیر شی چه وُبه بَهیږی تردے چه سړے به زکوٰة د خپل مال نه اُوباسی او څوك به نهٔ مومی چه زکوٰة ترے واخلی»۔ [صحیح مسلم]

زهٔ وایم چه داسے زمانه قریبه ده چه راشی۔ اُوس هم د زکوٰة مستحقین ډیر کم دی، او دا کوم خلق چه زکاتونه اخلی نو اکثر په دے کښ د بے قناعتئ د وجه نه زکاة اخلی، ورنه دوی مستحق نهٔ

دی، ځکه چه هرهغه څوك چه دوه پنځوس نیمے تولے سپین زر یا د هغے قیمت لری، نو په هغه زکوٰة نهٔ کیږی او دا خو تقریباً هر سړی سره شته خو زړهٔ ئے وړے وی ځکه زکوٰتونه اخلی۔

بعض مُلایان وائی چه ملا صاحب که د سرو زرو په اَس باندے ناست وی، هُم د زکوٰة مستحق دے، دا خبره بالکل غلطه او فاحشه ده۔ زهٔ وایم چه ملا خو دے بالکل همیشه د خلقو نه مستغنی وی اګرکه غریب وی ځکه چه دهٔ سره قرآن دے، او قرآن د ټولے دنیا نه بهتر دے لکه په سورة یونس کښ الله تعالیٰ فرمائیلی دی: ﴿هُوَ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُوْنَ﴾ دا قرآن د دنیا د مال نه بهترین شے دے۔

## ۲۲- د عربو په زمکه کښ فراخی:

د مذکوره حدیث په حصه کښ راځی: [وَحَتّٰى تَعُوْدَ اَرْضُ الْعَرَبِ مُرُوْجاً وَاَنْهَاراً]۔

قیامت به هله راځی چه د عربو زمکه چمنونه او نهرونه شی۔ د الله دپاره فکر اُوکړئ چه څوك لږ مخکښ حج ته تلی وو، نو اُوس دے هم اُوګوری چه حالات څومره بدل شو، د نبی ﷺ په زمانه کښ څومره شاړے او صحراګانے وے، اُوس هغه ټولے آبادے شوے، او سرکونه پاخهٔ شو، او ښائسته ښائسته وُنے بوټی په کښ ولاړ دی۔ عربو دا منصوبه هم تیاره کړیده چه د فرات نهر جزیرة العرب طرف ته راړوی او عربو خپله داسے آلات او ذرائع او ټیوب ویلونه تیار کړیدی چه په هغے سره د صحرائی زمکے د بیخ نه اُوبه

راکاړی او علاقو ته ئے ورکړیدی۔

او دا مطلب هم کیدے شی چه مال به په عربو کښ زیات شی، لکه مخکښ به عرب پاکستان ته راتلل، څوك د مزدورئ دپاره او څوك د سوال دپاره، او اُوس عرب د ټولو ملکونو نه زیات مالدار دی، او فراخی پرے الله تعالیٰ راوستے ده، او د تیلو چینے ورله الله روانے کړے دی چه عام ممالك ورته محتاج دی۔

## ۲۳- د مدینے منورے د آبادئ فراخی

په بل روایت کښ ورسره دا هم شته چه «تردے به قیامت رانشی ترڅو چه د مدینے منورے آبادی إهاب یا یَهَاب مقام ته نۀ وی رسیدلی»۔ (مسلم)

مخکښ د مدینے آبادی ډیره کمه وه، خال خال کورونه وو، او اُوس مونږ لیدلی او اوریدلی دی چه د مدینے منورے آبادی ذو الحلیفه ته رسیدلے ده، او ذو الحلیفه تقریباً د مدینے نه دولس میله وړاندے ده۔

## ۲٤– یو اُور ښکاره کیدل :

د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ إرشاد فرمائیلے دے چه «قیامت به نۀ قائمیږی تردے چه راوُنۀ وزی یو اُور (یعنی ښکاره نۀ شی) په زمکه د حجاز کښ چه د هغه اُور رڼړا به بُصریٰ مقام ته رسیږی، او هلته چه کوم اُوښان دی د هغے څټو نه رڼړا شی» (صحیح بخاری و مسلم)

بُصریٰ په شام کښې یو کلے دے۔ د مدینے په تاریخ کښې ذکر شویدی چه په مدینه کښې یو ځل لویه زلزله راغله او خلق پوهه شو چه قیامت راغلو بیا یو طرف نه زمکه اُوچاوده او د هغے نه یو اُوچت اُور راپورته شو، دا ځلوبنت ورځو پورے بل پاتے وو او کانړی پدے اُور سره سوزیدل لیکن گیاه ئے نهٔ سیزله، په سلګونو میلونو پورے ددے رنړا خوره شوے وه۔ دا واقعه د عباسیه ؤ د سلطنت په آخر کښې راپیښه شوے وه۔

[شرح مسلم ۳۹۳/۲]۔

## ۲۵- د زمانے لنډیدل

عَنْ اَنَسٍ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَتَقَارَبَ الزَّمَانُ فَتَكُوْنُ السَّنَةُ كَالشَّهْرِ وَالشَّهْرُ كَالْجُمُعَةِ وَتَكُوْنَ الْجُمُعَةُ كَالْيَوْمِ وَيَكُوْنَ الْيَوْمُ كَالسَّاعَةِ وَتَكُوْنَ السَّاعَةُ كَالضَّرْمَةِ بِالنَّارِ» [ترمذی]۔

انس ﷛ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:

«قیامت به نهٔ راځی تر هغه وخت پورے چه زمانه لنډه شی پس شی به کال په شان د یوے میاشتے او میاشت به په شان د جُمعے شی، او جُمعه یعنی هفته به په شان د یوے ورځ شی او یوه ورځ به د لږ ساعت غوندے شی او یو ساعت به داسے زر تیریږی لکه وارهٔ ډکی چه زر اُور اخلی» یا لکه تیل چه زر اُور اخلی۔

دے حدیث کښې یوه معنیٰ دا ده چه زمانه او عمر به بے برکته شی، خلق به په دنیاوی کارونو او فتنو کښې آخته وی او عمر ته به ئے فکر نهٔ وی، نو زر به ترے تیر شی، او یا حدیث حمل دے په ظاهر

باندے او هم دا خبره بنهٔ معلو میږی۔
اُوس کـه زهٔ قسـم اُوکـړم چـه دا عـلامـه موجوده ده نو حانث به نهٔ شـم، کـال داسـے زر تیـریـږی چـه اِنسـان پـرے هډو پو هیږی هُم نهٔ، او میـاشـت خـو د جُـمـعـے په شان زر ختمه شی، او خاصکر میاشت په هـغـه چا زر تیریږی چه د هغه څهٔ کار د میاشتو سره متعلق نهٔ وی، او زمـا خـپـلـه تـجـربه ده چه پنځه کاله مخکښ به ما په یو پاؤ وخت کـښ اودس او څلـور رکـعـاتـه مـونځ بنهٔ په قلاره کولے شو، اُوس په کـښ زهٔ اِیـلـه اودس قـدرے هـم پـه جلتئ سره کوم، پاتے لا نور مونځ کول، نو دا علامه هم موجوده شوے ده۔

## ۲۶ – اِنْشِقَاقُ الْقَمَر : ( دسپوږمئ چاودل)

عبـد الله بـن عمر ﷺ فـرمـائـی : د رسـول الله ﷺ پـه زمـانه کښ سپوږمئ اُوچاده نو نبی ﷺ خلقو ته اُوفرمایل چه گواه شئ۔
(ترمذی شریف)

یـعـنـی کـافـرانـو دا مـعـجـزه طلب کړے وه، نو الله پاك دا معجزه وراُوخودله۔ قرآن کریم کښ الله فرمائی :
﴿ اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ۔﴾ (الآیة)
(قـیـامـت رانزدے شو او سپوږمئ اُوچاوده)۔ دا علامه د قیامت د رسول الله ﷺ په زمانه کښ موجوده شوے ده۔

## ۲۷ – خَسْف او مَسْخ به کیږی :

ابـن عمر ﷺ فـرمـائـی : چـه مـا د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه

فرمایل ئے : «زما پـه امت کښې به خسف (یعنی په زمکه ډوبیدل)، او مسـخ (یـعنی شکل بدلیدل) وی او دا عذاب به الله تعالیٰ اکثر په هغه کسانو راولی چه د تقدیر الهی نه منکر وی».

[ترمذی، ابو داود بسند صحیح، سلسلة الاحادیث الصحیحة : ۱۷۸۷)

ددے عـلامے بـعـض واقـعـات پـه دے زمـانـه کـښې او لږ غـونـدے مـخکښې زمانه کښې موجود شوی دی، لکه په گلگت علاقه کښې خسف راغلے وو، په امریکه کښې مکمل کلی په زمکه ډوب شوی دی، او مشهـوره خبـره ده چه اَخبار هم راخستے وه چه په مکه کښې یـو سړے پـه شـکـل د مـار شـوے وو۔ او په پیښور علاقه زرگر آباد کـښې هـم یوه ښځه معمولی غونډے د خرے په شکل گرزیدلے وه۔ او دا قسم واقعات به نور هم واوری – ان شاء الله تعالیٰ – والله اعلم۔

## ۲۸– د پخوانو امتونو (غیر مسلمو) تابعداری کول :

رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : [لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ شِبْراً بِشِبْرٍ وَذِرَاعاً بِذِرَاعٍ حَتّٰى لَوْ دَخَلُوْا جُحْرَ ضَبٍّ تَبِعْتُمُوْهُمْ» قِيْلَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! اَلْيَهُوْدَ وَالنَّصَارىٰ ؟ قَالَ:«فَمَنْ ؟» (متفق علیه بروایة ابی سعید)

تـاسـو بـه د پـخـوانو خلقو په طریقه مکمل روان شئ لویشت په لـویشـت او گـز پـه گـز تردے که هغوی د سمسارے سُوړے ته داخل شوی وی نـو تاسو به هم د هغوی تابعداری اُوکړئ، صحابه کرامو عـرض اُوکـړو اے د الله رسـولـه ! (ستـا مقصد په پخوانو خلقو سره) یهـود او نـصاریٰ دی؟ نو هغوی اُوفرمایل : (چه هو کنه) نور څوك

دی؟ - (بخاری ومسلم)

مطلب دا چه که هغوی هر قسم غلط کارونه او حیلے وغیره کری وی، نو دا اُمت به هم د هغوی په شان عمل اختیار کړی۔

پس فکر اُوکړه چه اُمت کښې تول اعمال د یهود او نصاراؤ چلیږی او خلق خپلے عقیدے، اعمال، اخلاق، لباس، ظاهری جُثه د هغوی سره مشابه کوی، او حال دا دے چه هغوی ته تهذیب والا وئیلے کیږی۔

## ۲۹- په تکبر تلل :

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی :

[إِذَا مَشَتْ أُمَّتِي الْمَطِيْطَيَاءَ]

(کله چه زما امت په تکبر تلل شروع کړی) :

## ۳۰- د ملکونو فتح کیدل :

او خدمت اُوکړی د دوی ځامن د بادشاهانو د فارس او د روم، نو دغه وخت کښې به الله تعالیٰ اشرار او خراب خلق په اخیارو او نیکانو خلقو مسلط کړی»۔ (ترمذی ۲/۲ ٤ بسند صحیح)

لکه اوله علامه خو اُوس هم موجوده ده چه اکثر خلق په تکبر کښې گرزی، او د حق مخالفت کوی ځکه چه تکبر دا هم دے چه یو انسان حق له دیکه ورکړی او انسانان سپك گنړی۔ او دویمه علامه : محدثین وائی چه دا په زمانه د عثمان رضی الله عنه کښې موجوده شوے وه، ځکه هرکله چه فارس او روم فتح شو نو سبائیه

یوه ډله وه، هغوی عثمان شهید کړو او بنی اُمیه په بنی هاشم غالبه شو لکه دا خبره د تاریخ په کتابونو کښ واضحه شوې ده۔

## ۳۱- د دُنیا مالدار به رذیلان او بخیلان شی :

د حذیفه ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی :
[لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰی یَکُوْنَ اَسْعَدَ النَّاسِ بِالدُّنْیَا لُکَعُ ابْنُ لُکَعٍ]
(ترمذی : ۲۲۰۹، بیهقی واسناده صحیح)

(قیامت به نۀ راځی تر هغې پورې چه په دنیا باندې به نیخکته هغه څوك وی چه هغه ډیر رذیل څوی د رذیل وی۔

یعنی مطلب دا شو چه مشران او اقتدار والا به رذیلان او احمقان وی او بخل کونکی به وی۔ او همدارنګه مالداره خلق به هم داسې شی، څه د نیکۍ کار به ترې نۀ کیږی۔

## ۳۲- په دین به ټینګیدل ګران شی :

د انس ﷺ فرمان دے چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی :
[یَأْتِیْ عَلَی النَّاسِ زَمَانٌ الصَّابِرُ فِیْهِمْ عَلٰی دِیْنِهٖ کَالْقَابِضِ عَلَی الْجَمْرِ]

(په خلقو به یو داسې وخت راشی (یعنی د قیامت نه مخکښ) چه څوك په دین کلك وی نو هغه به داسې وی لکه سکروټې په لاس کښ راخستونکے) (ترمذی : ۲۲٦۰ صحیح)

یعنی لکه انسان چه په لاس کښ سکروټې نشی نیولې مګر په ډیر مشقت سره، دارنګ به په دین عمل ګران شی ... چه ماح ... به خراب وی، او دا علامه اُوس حقیقةً مو... ده ...

: لکه ںن بازار تـه لاړ شه نو بغیر د گناه نه به واپس نهٔ راځے ځکه چه زنانه به بے حیاء گرځی، سر ښکاره، مخ ښکاره، سینه ښکاره او خپل زینت هم ښکاره کوی دغه شان د کور ماحول ته اُوگوره که ته خپل کور کښې په پوره دین عمل کوے نو تا ته به ډیر مشکلات مخے ته راځی که څوی ته د گیرے او د مانځه د پابندئ حکم کوے نو ښځه به ډِے وائی چه هلکان دی ډیره سختی ورسره مه کوه۔ فالی الله المشتکیٰ۔

## ۳۳- د کفارو په مسلمانانو زړور کیدل :

د ثوبان رضی الله عنه نه نقل شوی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی :

«نزدے ده چه کافران به په تاسو راټول شی او یو بل ته به دعوت ورکړی ستاسو د ختمولو دپاره، لکه خوراکیان چه خوراك ته رابللے شی (یعنی څوك چه دخوراك لوښی ته راځی هغه نهٔ ویریږی دارنگه به کافران هم د مؤمنانو نه نهٔ ویریږی) نو چا عرض اوکړو اے د الله رسوله ! آیا مونږ به کم یو په دغه وخت کښې؟ نو هغوی ارشاد اُوفرمایهٔ : «نهٔ، تاسو به ښهٔ ډیریئ، لیکن تاسو به داسے یئ لکه د سیلاب خشاك، او الله به ستاسو رعب د دشمنانو د زړونو نه لرے کړی او ستاسو په زړونو کښې به وهن راولی»، چا تپوس اُوکړو چه وهن څهٔ ته وائی؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل : «د دنیا محبت او مرگ بد گنړل» ـ (ابوداودؒ، شعب الایمان، السلسلة الصحیحة : ۹۵۸)

نن هم دغه حال دے چه د هر طرف نه کافران په مسلمانانو حملے کوی، او هغوی په اکثرو ځایونو کښ مغلوب دی، ځکه چه وهن په کښ راغلے دے، الله جل شانه ډے زمونږ د زړونونه وهن لرے کړی۔ آمین۔

## ۳۴- قتل وقتال به ډیر شی :

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

«قسم په هغه ذات چه زما روح د هغه په لاس کښ دے چه دنیا به نهٔ ختمیږی تردے چه رابه شی په خلقو داسے زمانه چه قاتل به قتل اُوکړی او پته به ورته نهٔ وی چه قتل ما ولے اُوکړو ! (یعنی بے ضرورته قتلونه به ډیر شی) او نهٔ به مقتول ته پته وی چه زهٔ په څهٔ مړ شوم؟ »چا تپوس اُوکړو چه دا به څرنګه وی ؟ (چه یو ته به هم پته نهٔ لګی)، نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «دا ځکه چه فتنے به ډیرے شی او قاتل به هم اُور ته ځی او مقتول به هم اُور ته ځی »۔ (مسلم)

مطلب دا چه داسے فتنے به راپیدا شی چه هغه به ړندے فتنے وی ښه او بد به پکښ نهٔ معلومیږی، قاتل به هم د قتل د سبب نه خبر نهٔ وی او مقتول به هم خبر نهٔ وی چه زه وژلے شم ؟

دواړه به ولے اُور ته ځی ؟ وجه دا ده چه قاتل مُجرم دے او مقتول د هغه په وژلو حارص (حرص کونکے) وو لیکن قاتل پرے رامخکښ شو۔

## ۳۵- د خواهشاتو تابعداري به زياته شي او هر سړی ته به خپله رائے غوره ښکاري۔

د ابو ثعلبه رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

«امر په نيکئ کوئ او منع د بدونه کوئ تردے چه د خلقو دا حالت شي چه تاسو وينئ چه خلق د بخل تابع شي او د خپل خواهش تابع شي، او دنيا غوره کړے شي په دين باندے، او هر سړے په خپله رائے خوشحاله وي، (او په خپل جماعت او ډله باندے راضي وي، او که ته ورته دعوت ورکوے، نو تۀ ورسره هم خرابيږي) نو بيا د خپل ځان غم کوه او عام خلق پريده، ځکه چه روستو د صبر ورځے راروانے دي، څوك چه په هغے کښ صبر کوي داسے به وي لکه چه سکروټے په لاس کښ راخلي، څوك چه په داسے ورځو کښ نيك عمل کوي، نو الله به ورله د پنځوسو صحابه کرامو اجر ورکوي»۔

(صحيح لغيره: الترمذی ۳۰۵۸) وابوداود (٤۳٤۳) صحيح الترغيب (۳۱۷۲)

## ۳٦- په جماتونو باندے فخر کول۔

د انس رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

(إِنَّ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ يَّتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ)

(ابوداود :٤٧٦ بسند صحيح)

(د قيامت د بعض علاماتو نه دا ده چه خلق به فخر کوي په

ډولی کولو (او جوړولو) د مساجدو کښې۔

دا علامه هم نن موجوده شوے ده، جُماتونه د فخر دپاره په چندو باندے جوړوی۔

او عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی : «لَتُزَخْرِفُنَّهَا كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارٰى»۔ تاسو به جماتونه ښائسته کړئ په ګلونو او قسماقسم رنګونو باندے لکه یهود او نصاراؤ چه کړی وو۔

نو نن اُوګوره جماتونه منقش دی، ښائسته قالینونه او درئ پکښې غوړیدلی دی، لیکن د هدایت نه خالی دی۔

یو حدیث کښې راځی انس رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل دی چه ((په خلقو به داسے زمانه راشی چه په جماتونو کښې به ئے حلقے جوړے کړی وی او د هغوی همت به صرف دنیا وی (یعنی د دنیا په باره کښې به لګیا وی) د الله تعالیٰ په داسے خلقو کښې هیڅ حاجت نشته، نو تاسو د داسے خلقو سره مۀ کینئ))

(المستدرك: ٧٩١٦- الصحيحة : ١١٦٣) وشعب الايمان)

یعنی الله داسے خلقو ته هیڅ توجه نۀ ورکوی۔ ځکه چه دوی د الله په نیز باندے سپکه دنیا مسجد ته راوړه او د هغے په باره کښې په عظیم مقام کښې خبرے اترے کوی او د الله د تعظیم نه غافله دی۔ او دنیا ورته لوئی شے ښکاره شویدے۔

## ۳۷- د اسلام اجنبیت او ناشنا والے :

ابو هریره رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

((بَدَأَ الْإِسْلَامُ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ كَمَا بَدَأَ فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ)) (مسلم)

(اسلام اول کښې خلقو ته ناشنا وو، او بیا به روستو هم داسې وخت راشي چه ناشنا به شي، خلق به ئې نهٔ پيژني، پس هغه کسانو له خوشحالي ده چه په داسې وخت کښې د رسول الله ﷺ په سنتو منګولې لګوي)۔

مطلب دا شو چه رسول الله ﷺ چه اول کښې دعوت د اسلام وركړو، نو لږ خلق مسلمانان شو او خلقو به دوی ته يې دينه وئيل، او رسول الله ﷺ چه كله دعوت وركړو، او كافرانو واوريدو نو دا ئې اُووئيل :﴿ مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ﴾ دا مونږ نهٔ دي اوريدلي دي په ملت روستني كښې، دا خو دروغ دي) نو راتلونكې زمانه كښې به هم داسې وخت راشي چه اِسلام نه به خلق اجنبيان شي، لكه په روايت د ترمذیؒ او ابن ماجهؒ كښې راغلي دي چه ايمان به حجاز ته داسې راتول شي لكه مار چه خپلې سوړې ته واپس كيږي۔

لهذا ايمان به حجاز مقدس يعني مكې او مدينې ته واپس لاړ شي، او اكثر خلق به اِسلام نهٔ پيژني۔

## ۳۸- د هرې مخكښې زمانې نه به روستو زمانه خرابه راځي :

زبير بن عديؒ فرمائي : مونږ د انس رضی الله عنه په خدمت كښې حاضر شو نو مونږ ورته د حجاج بن يوسف (ظالم بادشاه) نه شكايت اُوكړو، چه هغه په مونږ ظلمونه كوي۔ نو انس رضی الله عنه اُوفرمايل : صبر

کوئ څکه چه د هر وخت نه روستو خراب او د شر وخت راځي، تردے چه د خپل رب سره به ملاقات اُوکړئ (یعنی مرګ به درله راشي) او دا خبره ما ستاسو د نبی علیه السلام نه آوریدلے ده۔ (صحیح بخاریؒ)

معلومه شوه چه د زمانے والو نه هسے ہے ځایه شکایتونه نهٔ دی پکار۔ او د ښه حاکمانو انتظار هم نهٔ دے ضروری، بلکه خپل عمل کول پکار دی او څو مره وخت او فرصت چه درته ملاویږی بس د الله په عباداتو کښې ئے ډکوه۔

## ۳۹- د کفر آسانیدل:

د ابو هریره رضی الله عنه نه نقل دی فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایلے دے: «بَادِرُوا بِالْاَعْمَالِ فِتَناً كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ، يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِيْ كَافِراً، يَبِيْعُ دِيْنَهٗ بِعَرَضٍ مِنَ الدُّنْيَا» (مسلم)۔

(اے خلقو! په نیك اعمال کولو سره د فتنو د راتلو نه مخکښې جلتی اُوکړئ، چه داسے تورے فتنے به وی لکه د تورے شپے ټوټے او حصے۔ یو سړے به صبا کوی مؤمن او ماښام له به کافر وی، او ماښام به مؤمن وی او سحر به کافر شوے وی، او خپل دین به په سامان د دنیا خرڅوی)۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه په خپل امت باندے د شفقت والا دے، داسے ارشاد ئے اُوفرمایلو چه اعمالو کښې جلتی اُوکړئ څکه هرکله چه فتنے راشی بیا به انسان نیك اعمال نهٔ شی کولے، ډیر رکاوټونه به

وی، د کور، د کاروبار، د ماحول، د شیطان د طرفه۔ او بله دا خبره اُوشوه چه خلق به خپل دین په دنیا خرڅوی، لکه نن صبا اُوګوره چه اسلام خلق پریدی، او نور دینونه، او د هریت په اسلام باندے غوره کوی، او د دنیا د حصول دپاره د الله تعالیٰ لوئی لوئی حکمونه ماتوی۔

## ٤٠ – د دروغو حدیثونه :

ابو هریره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی :
«په آخره زمانه کښ به دجالان او دروغژنان پیدا شی، تاسو ته به داسے حدیثونه بیانوی چه نۀ به تاسو اوریدلی وی، او نۀ به ستاسو مشرانو اوریدلی وی نو د داسے دروغژنو خلقو نه وړاندے اُوسیږئ، چه چرته ګمراه مو نۀ کړی، او په فتنه کښ مو وانۀ چوی» (مسلم شریف)

نن زمانه کښ دا قسم خلق ډیر زیات موجود دی، د خپلو مذهبونو او جماعتونو دپاره حدیثونه جوړوی، او د هغے نسبت په دروغه سره رسول الله ﷺ ته کوی۔او په دے باره کښ ډیر وعیدونه راغلی دی، بعضِ ما په یوه رساله چه نوم ئے (موضوعی حدیثونه) دے – ذکرکړی دی۔

## ٤١ – د حدیثونو نه به انکار شروع شی۔

د ابورافع ﷺ نه روایت نقل شویدے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «لَاأُلْفِيَنَّ اَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلٰی اَرِيْكَتِهٖ» (زه دِے اُونۀ مومم په

تاسو کښې داسې کس چه په خپل پالنګ به ناست وی، او زما د حدیثونو نه به ورته یو حدیث راشی، دا به وائی چه په دې مونږ نهٔ پوهیږو (یعنی د حدیثونو نه به اِنکار کوی) او دا به وائی چه مونږ به د قرآن تابعداری کوو»۔

(احمدؒ، ابو داودؒ، ترمذیؒ، بیهقیؒ بسند صحیح)

مطلب دا شو چه داسې خلق به راشی چه په خپلو تکیه ګانو به ناست وی په طریقه د تکبر سره او حدیث چه کله واوری نو اِنکار به ترې کوی، لکه اُوس پرویزیان او دهریان پیدا شوی دی، د رسول الله ﷺ د حدیثونو نه اِنکار کوی او د قرآن درس چه کوی نو په ګُرسو ناست وی، او ښځې مخکښې ناستې وی او سړی روستو ناست وی، دا علامه هم نن موجوده شوې ده۔

اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ.

## ۴۲- مسلمانان به مالدار شی لیکن دیندار به نهٔ وی

علی رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په مسجد کښې ناست وو نو په دې مینځ کښې مصعب بن عمیر (رضی الله عنه) راغې چه هغه باندې صرف یو څادر وو او هغه هم پیوندی وو، نو هرکله چه رسول الله ﷺ هغه اُولیدو، په ژړا شو، ددې وجه نه چه د اِسلام نه مخکښې دې په څو سره مزو کښې وو، او اُوس د اسلام راوړلو نه روستو څومره غریب شو۔ بیا رسول الله ﷺ اُوفرمایل: «داسې

وخت به راشي چه تاسو به سحر یوه جوړه اَغوندئ او بیګاه به بله جوړه اغوندئ او ستاسو مخکښ به کاسے د خوراکونو مختلفے کیخودے شي او خپل کورونه به په جامو باندے پټ کړئ لکه څرنګه چه کعبه پټولے شي» نو صحابه کرامؓ عرض اُوکړو چه هغه وخت به مونږ ښه یو، ځکه چه عبادتونو ته به اُوزګار شو، او د مشقتونو نه به خلاص شو نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «نهٔ ! بلکه نن تاسو غوره یئ د راتلونکی وخت نه»۔

[ترمذی، الصحیحة ٥٠٥/٤: رقم [١٨٨٤]۔

یعنی فراخي به ډیره شي او عبادات به کم شي ځکه چه دا قانون دے چه د دنیا مال ډیر شي نو اِنسان اکثر ناشکره جوړ شي لکه نن مونږه دا مشاهده کوو۔

## ٤٣- دروغ به عام شي

عمران بن حصین ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ ارشاد فرمایلے دے چه « په تاسو کښ غوره خلق زما پیړئ ده، بیا هغه کسان چه دوی پسے دي بیا هغه کسان چه د هغوی پسے دي بیا ئے اُوفرمایل : داسے خلق به راپیدا شي چه خیانتونه به کوی او امانتګر به نشي ګڼړلے کیدے او ګواهي به ورکوی او ګواهي به ترے طلب شوی نهٔ وی او نذرونه (منښتے) به کوی او وفاداری به نهٔ کوی او په دوی کښ به څورب والے ښکاره شي)

[النسائی : ٣٨٠٩ بسند صحیح] ۔

مطلب دا دے چه په ټولو کائناتو کښې د انبیاء کرامو نه روستو زمونږ د رسول الله ﷺ ملګری غوره مخلوق دے، بیا هغه خلق چه د هغوی پسے دی یعنی تابعین عظام بیا تبع تابعین۔ او د هغوی نه روستو به داسے ناکاره خلق پیدا کیږی چه خیانتونه به کوی او بے ځایه ګواهی به ورکوی چه چا به ترے د ګواهی مطالبه نۀ وی کړی او نۀ به موقع ته حاضر شوے وی خو د ځان نه به ګواهی کوی او نذرونه به کوی خو هغه به نۀ پوره کوی۔
نن فکر اُوکړه! آیا دا خبرے نۀ دی ښکاره شوی؟۔

## ٤٤- تر قیامته به یوه ډله په حق ولاړه وی:

د قره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی:
«زما د امت نه به یوه ډله همیشه په حق ولاړه وی چه د دوی سره به (د الله د طرف نه) مدد کیدے شی، که دوی سره څوك مدد نۀ کوی نو دوی ته به هیڅ ضرر نۀ رسیږی او دا به تر قیامته پورے وی»۔ (ابن ماجه : ٦ بسند صحیح)

مطلب دا شو چه الله پاك د خپل دین د اِشاعت دپاره په هره زمانه کښې همیشه مجددین پیدا کوی، او د خلقو د عذر زائله کولو دپاره علماء او نیکان او دعوت ورکونکی خلق پیدا کوی چه هغه په خلقو باندے حجت او دلیل دے د الله تعالیٰ د طرف نه، ددے وجه نه هر انسان له پکار دی چه د اهل حقو ملګرتیا اختیار کړی او خپله لاره نیغه کړی او د کتاب او سنت دعوت قبول کړی ځکه همدا د

کامیابئ لاره ده۔

## ۴۵- قرآن کریم
## به ذریعه د معاش اُوګرزولے شی

جابر رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ په مونږ راووتو او مونږ قرآن کریم لوستو، او مونږ سره باندو والا او عجمیان هم وو، نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل: «قرآن وایئ، هر یو ستاسو نه ښهٔ کار کوی، زر دے چه داسے خلق به راشی چه د قرآن الفاظ به برابروی لکه غشے چه څرنګه برابرولے شی، دُنیا به پرے ګټی او آخرت به پرے نهٔ ګټی»
(ابو داود: ۷۸۳، بیهقی - الصحیحة: ۲۵۹)

یعنی آخرت د ثواب دپاره به ئے نهٔ وائی۔ او نن دا قسم خلق بے شماره دی۔

## ۴۶- قرآن به صرف د آواز دپاره شی

د حُذیفه رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی:
«د عربو د آوازونو مطابق قرآن کریم لولئ (یعنی ډیر تکلف د نغمو پکښې مهٔ کوئ) او د عشق والا او د اهلِ کتابو د آوازونو نه ځان بچ کړئ)۔ او زر دے چه داسے خلق به راشی چه قرآن به په شان د سندرو وائی، او د ژړا د آواز په شان به ئے وائی۔ او قرآن به د دوی د مَرونه نهٔ تیریږی، یعنی نهٔ به قبلیږی (او یا به زړهٔ ته نهٔ پریوزی) د دوی زړونه هم فتنے والا دی، (لکه د دُنیا مینه، ریاء شوه) او زړونه د هغه کسانو چه د دوی شان ورته ناشنا ښکاری (هغه به هم فتنے

والا وی))

[بیهقی، رزین وفی سنده مقال ومعناه صحیح]

یعنی لکه عاشقان خلق د موسیقیٔ مطابق شعرونه وائی او همدارنګه اهلِ کتابو یعنی یهودو او نصاراؤ به د تورات او انجیل په لوستلو کښې ډیر تکلف کولو، نو د داسې خلقو مشابهت مهٔ کوئ۔

څکه چه دغه قاریان به هم د فتنو والا وی او څوك چه دوی ته ناست وی او د دوی او قراء ت او د دوی شان ورته عجیبه ښکاری دا به هم فتنو والا وی او د قرآن کریم د اصل مقصد نه خبر نهٔ وی صرف په آواز به عاشقان وی۔

سبحان الله ! دا علامه خو نن صبا ښکاره ده چه متکلفین قاریان بې شماره دی، تقویٰ نهٔ لری، زړهٔ کښې خشوع نهٔ لری، هسې خوش آوازی کوی په تکلف سره او خلق وائی چه دا ډیر ښهٔ قاری دې، او لوئی عالِم دې څکه حدیث کښې راځی چه ددې اُمت اکثر قاریان به منافقان وی۔ (مشکوٰة)

نن صبا د تجوید ډیر زور او شور دې، د حسن قراء ت مقابلې په حکومتی سطح باندې کولې شی لیکن د قرآن د تعلیم کوشش څوك هم نکوی، الا من رحم الله، او نهٔ څوك په قرآن باندې د عمل کوشش کوی۔ والی الله المشتکیٰ۔

## ۴۷ – فتنې به ډیرې شی او علم به ختم شی۔

انس بن مالك رضی الله عنه فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل :

((إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يُرْفَعَ الْعِلْمُ وَيَظْهَرَ الْجَهْلُ وَيَفْشُو الزِّنَا وَيُشْرَبَ الْخَمْرُ وَيَذْهَبَ الرِّجَالُ وَيَبْقَى النِّسَاءُ حَتَّى يَكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً قَيِّمٌ وَاحِدٌ))
[بخاری ومسلم]۔

(د قیامت د علاماتو نه دا ده چه علم به پورته کړے شی او جهالت به ښکاره شی او زنا به عامه شی او شراب به اُوسکلے شی او سړی به ختم شی او ښځے به پاتے شی تردے چه د پنځوسو ښځو به یو مشر وی)۔

○ د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت نقل شویدے، فرمائی چه ما ته رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل :

(( تَعَلَّمُوا الْعِلْمَ وَعَلِّمُوْهُ النَّاسَ، تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَعَلِّمُوْهَا النَّاسَ، تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ وَعَلِّمُوْهُ النَّاسَ فَإِنِّي امْرُؤٌ مَقْبُوْضٌ وَالْعِلْمُ سَيَنْقَبِضُ وَيَظْهَرُ الْفِتَنُ حَتَّى يَخْتَلِفَ اثْنَانِ فِيْ فَرِيْضَةٍ لَايَجِدَانِ اَحَداً يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا)) (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَالدَّارِقُطْنِيُّ كَذَا فِي الْمِشْكٰوةِ وصححه الحاكم ووافقه الذهبی وضعفه الالبانی)

(علم زدهٔ کړئ، او خلقو ته ئے هم زده کړئ، او علمِ میراث هم زده کړئ او خلقو ته ئے هم زدهٔ کړئ، او قرآن کریم زده کړئ او خلقو ته ئے بیان کړئ، ځکه چه زهٔ وفات کیدونکے یم او علم به په جلتئ قبض (ختم) شی او فتنے به راښکاره شی، تردے چه دوه کسان به په یوه مسئله کښ مختلف شی او څوك فیصله کونکے به نهٔ وی چه فیصله ورله اُوکړی)۔ (دارمی، دارقطنی)

دا علامے ټولے موجودے شوی دی، فتنے بے شماره دی، او علم

نشتـه الا مـا شـاء الله۔او علم میراث باندے په لکهونو کښې یو کس چرته پو هیږی، او هغه هم په ډیره کمه مرتبه کښې او د قرآن تعلیم هم په ډیره کمه مرتبه کښې دے۔ سبحان الله !۔

## ٤٨- ټول خلق به سود خوارهٔ شی

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی :
« لَيَـأْتِيَـنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقٰى اَحَدٌ اِلَّا آكِلَ الرِّبٰوا فَاِنْ لَّمْ يَأْكُلْهُ اَصَابَهٗ مِنْ بُخَارِهٖ – وَيروى : مِنْ غُبَارِهٖ » ۔

(رواه احمد وابوداود والنسائی وابن ماجه والحسن لم یسمع من ابی هریرة والحدیث اصله فی البخاری : لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يُبَالِى الْمَرْءُ مَا اَخَذَ مِنْهُ اَمِنَ الْحَلَالِ اَمْ مِنَ الْحَرَامِ)

(رابـه شـی پـه خلقو یوه زمانه چه یو سړے به بغیر د سُود خوړلو نـه پاتے نهٔ شی۔که چرته خپله ئے ونهٔ خوری نو د سُود بخار او په بل روایت کښې دی چه د سُود غبار او ګرد خو به ضرور ورته وُرسیږی)۔

مـطـلـب دا شو چه څوك به حلال او حرامو ته نهٔ ګوری مګر څان بـه مـالداره کوی او مال به جمع کوی، او که خپله حرام نهٔ کوی، نو د پـلار یـا د ورور یـا د دوست او ګانډی مال به ئے حرام وی، او دهٔ ته به تـرے څـهٔ حـصـه وُرسیـږی، کـه نور څه نهٔ وی د هغوی طعام خو به چرته وُخوری۔

زهٔ وایـم چـه دا عـلامـه خـو په حکومتی سطح ډیره موجوده ده، بیـنـکـونـو کښې اکثر معاملات د سود دی، او عوام خلق هم په دے

مرض کښې مبتلا دی، او که ظاهری سود نهٔ کوی، نو معاملات ئې د دین مطابق نهٔ دی، اکثر خلق فاسدې او باطلې او مکروه بیعې کوی، نو دا هم په سُود کښې داخلیږی، او د حرام او د حلالو تمییز د عام انسانانو نه ختم شویدې نو هر مسلمان له دا کوشش ضروری دې چه د اخستو خرخولو مسائل یاد کړی چه چرته په حرامو کښې واقع نهٔ شی۔

## ٤٩- ریاکار عابدان به پیدا شی او کچه روژو والا

شداد بن اوس ؓ یوه ورځ وژړل، چا ترې پوښتنه اُوکړه چه ولې ژاړې؟۔ وې فرمایل : چه یوه خبره ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې ده هغه رایاده شوه نو زهٔ ئې وژړولم۔ ما ترې دا اوریدلی دی چه فرمایل ئې : «زهٔ په خپل اُمت د شرك کولو او د شهوتِ خفیه (پټ شهوت) تابع کیدو نه یَریږم، نو ما ترې تپوس اُوکړو چه اې د الله رسوله ! آیا ستا اُمت به روستو ستا نه شرك کوی؟ هغوی اُوفرمایل : چه هَوُ ! خو دومره ده چه د نمر، سپوږمۍ او د کاڼړو او د بتانو عبادت به نهٔ کوی (یعنی تهول اُمت داسې کار نهٔ کوی) لیکن دوی به په خپلو نیکو عملونو ریاکوی او شهوت خفیه دې ته وائی چه یو سړې به روژه ونیسی کله چه څه د خواهش شې ورته ملاؤ شی نو روژه به ورته ماته کړی)۔

(اخرجه الحاکم وبنحوه اخرجه احمد وفی سنده شهر وهو حسن الحدیث)

د ریاکارئ په باره کښې زیات وعیدونه راغلی دی، تردې چه ریاء

ته شرك وئیلے شویدے۔ او شرك اصغر هم ورته وئیلے شوے دے۔ یو حدیث په روایت د ابوسعید خدری ﷺ راغلے دے چه صحابه کرام وائی : مونږ (یوه ورځ) ناست وو، د دجال تذکره مو کوله نو رسول الله ﷺ راغے او وے فرمایل چه د دجال نه زیات د یرے شے زما په نزد نۀ درښایم؟ نو صحابه کرامو عرض اُوکړو چه ولے نۀ، نو هغوی اِرشاد اُوفرمایلو چه هغه شرك خفی دے، یو سړے به په مونځ ولاړ وی او مونځ به اُوږد کړی ځکه چه بل سړے به ورته ګوری، دا به هغه ته ځان ورښائی)۔

[مشکوة، ابن ماجه : ٤١٩٤ بسند حسن]

ددے حدیث د شداد بن اوسؓ نه بله مسئله دا معلومه شوه چه دے اُمت کښې به هم مشرکان ډیر پیدا شی لکه دا به روستو علاماتو کښې راشی ان شاء الله۔

## ٥٠- په ژبو سره خوراك كول

د سعد بن ابی وقاص ﷺ نه روایت دے چه رسول الله علیه الصلوات والتسلیمات فرمایلی دی :

«لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰی یَخْرُجَ قَوْمٌ یَأْکُلُوْنَ بِأَلْسِنَتِهِمْ کَمَا تَأْکُلُ الْبَقَرَةُ بِأَلْسِنَتِهَا» (رواه الامام احمد فی مسنده: (١٥٩٧) وصححه الالبانی فی صحیح الجامع : (٥٩٨٣)

(قیامت به نۀ راځی تردے چه راوُبه وزی څه خلق چه په خپلو ژبو سره به خوراك کوی لکه غویان چه په ژبو سره خوراك کوی)۔

مطلب دا شو چه ژبے به د خپل خوراك دپاره وسیله ګرزوی، د چا

به یے ځایه صفتونه کوی او مال به پرے گټی، او د چا به بدی بیانوی د مال د حصول دپاره لکه د نن زمانے شاعران او نعت خوانان شو۔ او مخکښې هم داسے خلق تیر شوی دی، لکه مُتَنبیّ یو شاعر په سنه (٣٥٤هـ) کښې قتل شویدے هغه به دا کار کولو۔ که څه روپۍ به چا ورکړے نو د الله مرتبے ته به ئے اُورسولو، او که چا به محرومه کړو نو سختے کنځلے به ئے هغه ته کولے لکه د کافور د مصر بادشاه صفات ئے د اُلو هیت په شان کړیدی لیکن کله چه هغه څه عهده ورنکړه نو بیا ئے داسے بیعزتی اُوکړه چه د هیڅ انسان هغه نشی کیدے۔ او همدارنګه د اُوس زمانے مقررین او لیډران هم په دے حدیث کښې داخل دی۔ ډیرے خبرے او زیات کلام او مسلسلے خبرے د رسول الله ﷺ خوښے نهٔ وے، بلکه د هغه خبرے خو به د یو بل نه جُدا جُدا وے۔ لکه د حدیثو په کتابونو کښې اُوګورئ !۔

## ٥١ – بخل به ډیر شي

د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

«زمانه به نزدے شی، او علم به قبض شی، او فتنے به ښکاره شی، او په خلقو کښې به بخل راشی او قتل وقتال به ډیر شی»۔

(متفق علیه)

(زمانه به نزدے شی) ددے لفظ ډیر مطلبونه دی :

١– یو دا چه زمانه به لنډه شی لکه چه دا بیان مخکښې شویدے۔

۲- یا دا چه خلق به په شر او فتنه کښ یو بل ته نزدے شی۔
ددے علاماتو نه د بعضو ذکر مخکښ شویدے، لکه بخل نن صبا ډیر زیات دے، تردے چه څوك زکوٰة ورکولو ته تیار نهٔ دی، پاتے لا نور انفاق وغیره۔ حدیث کښ راځی چه مسلمان کښ دوه خویونه نهٔ شی راتلے (یعنی مسلمان به ترے ضرور ځان ساتی) یو بخل او بل بد خوئی۔ (مشکوٰة)
یو حدیث کښ راځی چه «منافق کښ دوه صفتونه نهٔ شی راتلے، (یعنی هغه له الله دا صفتونه نهٔ ورکوی)، یو ښهٔ سیرت او وقار او بل په دین پوهه»۔ (ترمذیؒ)
د بخل په وجه صله رحمی قطع کیږی، جګړے پیدا کیږی، نور ډیر فسادونه پکښ دی چه څه حد ئے نشته۔

## ۵۲- فتنے به د باران په شان راځی

اُسامه بن زید رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ په یَو اُوچت ځائے د مدینے منورے راوُختو نو وے فرمایل چه «تاسو هغه څه وینئ کوم چه زهٔ وینم؟»، نو هغوی اُوفرمایل چه نَهٔ، نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل: زهٔ فتنے وینم چه ستاسو د کورونو په مینځ کښ واقع کیږی لکه په شان د باران»۔ (متفق علیه)۔
دا فتنے الله پاك رسول الله ﷺ ته متشکل کړے وے، او یا ئے صرف خبر ورکړے وو، اُوس دغه فتنے تولے موجودے شوے، لکه د عثمان رضی الله عنه قتل، واقعه دحرة، قتل د ابن زبیر (رضی الله عنه)۔ جنګ په مینځ

د علیؓ او معاویہؓ کښې شو۔ او نورې هم بې حسابه فتنې دی۔
الله دې مونږ په خپل رحمت سره د ظاهری او باطنی فتنو نه بچ وُساتی!۔

## ۵۳- گمراه کُن لیډران به پیدا شی :

د حذیفه ﷺ اِرشاد دې چه قَسم دې چه زما ملګرو خبره قصداً هیره کړې ده، او که ترې هیره شوې ده۔ مطلب دا شو چه رسول الله ﷺ یو بیان کړې دې او دوی هغه اوریدلې دې، اَو اُوس ئې خلقو ته نۀ ذکر کوی، دا څه وجه ده ؟ بیا فرمائی : چه قسم په الله چه نۀ دې پریښې رسول الله ﷺ یو لیډر او قائد د فتنې تر دنیا ختمیدو پورې (یعنی څومره لیډران چه راځی) نو د هغه او د هغه د پلار او د قبیلې نوم ئې مونږ ته راوخودلو)

(رواه ابوداود)۔

ددې روایت په سند کښې ضعف دې لیکن بل صحیح روایت کښې داسې الفاظ دی : إِنَّمَا اَخَافُ عَلٰی اُمَّتِی الْاَئِمَّةَ الْمُضِلِّیْنَ ]

(ابوداود وصحیح ابن ماجه (۳۹۵۲)

(یعنی زه په خپل امت باندې د گمراه کونکو مشرانو نه یریږم)

محدثین وائی چه مراد د قائد د فتنې نه بدعتی عالم او د گمراهۍ داعی او ظالمان مشران دی چه د اسلام او د مسلمانانو سره مقابلې کوی، دا قسم فسادونه خو نن ډیر زیات دی۔ بعضِ خلق په جامه د مُلایانو کښې خلق گمراه کوی او بعضِ په جامه د

غلطو پيرانو کښې مخلوق ګمراه کوي۔

## ٥٤- د مرګ تمنا به ډيره شي :

د ابو هريره ﷺ اِرشاد دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

«قسم په هغه ذات چه زما روح او نفس د هغه په لاس کښې دي چه دنيا به نهٔ ختميږي تردے چه يو سړے به تير شي په قبر باندے نو په دغه قبر باندے به وُرغړي او دا به اُووائي چه ارمان دے چه زهٔ په دے قبر کښې وے په ځائے ددے مړي، او دا تمنا به د دين د وجه نهٔ وي، بلکه په دهٔ باندے به مصيبتونه او پريشانيانے ډيرے وي»۔ (رواه مسلم)

مطلب دا شو چه دا اميد او تمنا د مرګ چه کوي نو د يے دينئ او د فسق اوفجور د زياتيدو په وجه به ئے نهٔ کوي بلکه خپل مصيبتونه او تکليفونه به پرے ډير وي، دے وجه نه حديث شريف کښې منع راغلے ده چه د مرګ تمنا مهٔ کوئ د مصيبت په وجه، ليکن قيامت ته نزدے به خلق داسے کوي لکه نن هم داسے شته، بعضِ ځان وژني او قتل کوي او بعضِ ځان ته اُور اَچوي د مصيبتونو او د زړهٔ د تنګيدو په وجه۔ او بعضِ په وَسله ځان وَژني خود کشي کوي۔

## ٥٥- د شرابو نوم به بدل کړے شي او حلال به ګنړلے شي

ابو مالك اشعری رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

« لَيَشْرَبَنَّ أُنَاسٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اسْمِهَا وَيُضْرَبُ عَلَى رُؤُوسِهِمْ بِالْمَعَازِفِ وَالْقَيْنَاتِ يَخْسِفُ اللّٰهُ بِهِمُ الْأَرْضَ وَيَجْعَلُ مِنْهُمْ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ» [البخاری فی التاریخ الکبیر (۳۰۵/۱) صحیح الجامع الصغیر : ٥٤٥٤]

(زما د امت نه به څه کسان خامخا شراب څکی چه هغې له به نوم بدل کړی او د هغوی په سرونو باندې به د تنګ تکور سامان وهلے شی او ډمې به ګډولے شی نو الله تعالیٰ به دوی لره په زمکه کښې داخل کړی او د دوی نه به شادوګان او خنزیران جوړ کړی)۔

○ د عائشےؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اِرشاد فرمایلے دے چه «د تولو نه مخکښې د اسلام د وُرانولو کوشش به په دے طریقه اُوکړے شی چه خلق به شراب څکل شروع کړی» صحابه کرامؓ عرض اُوکړو چه مسلمانان به ئے هم څکی او حال دا دے چه شراب خو الله په قرآن کښې حرام کړی دی۔ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : چه «نوم به ورله بدل کړی، او حلال به ئے ګنړی»۔ (رواه الدارمیؒ)

یعنی د اِسلام مدعیان به دومره زړهٔ ور شی چه الله سره به هم دهوکه کوی او څکل د شرابو لا څهٔ کوے چه حلال به ئے هم ګنړی او د هغه زمانے عالمان او مفتیان به څهٔ غلط غلط تاویلونه ورله کوی، لکه نن صبا بعضِ قاریان وائی چه مونږ په قرآن لوستلو پیسے نهٔ اخلو بلکه مونږ د خپل وخت پیسے اخلو، او بعضِ رشوت ته حلال وائی او رشوت ته هدیه او ډالیٔ وائی او حال دا دے چه فقهاؤ لیکلی دی چه هر هغه شے چه قاضی او لیډر ته ورکولے

شی چه مخکښ ورته نۀ شو ورکولے نو هغه به رشوت وی۔

## ۵۶- سُود به عام شی
## او د حرامو او د حلالو خیال به نۀ وی

ابو هریره رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «په خلقو به یوه داسے زمانه راشی چه سړے به باك نۀ کوی چه حلال ئے اُوګټل او که حرام؟»۔ (بخاریؒ)

پس اُوګوره نن چه د الله تول حکمونه خلق ماتوی د یوے روپۍ حاصلولو دپاره، ځان ته ګانے سندرے غړوی، په سود مال حاصلوی، په دروغو ئے حاصلوی، په ځلور آنے قَسم خوری، په ناروا مال حاصلوی، او بعضِ خلق په تعویذونو او بعضِ په ختمونو، او بعضِ په ګانو بجانو لکه ډمانو شو۔ بس چه څرنګه چاته مال مِلاویږی نو حاصلوی ئے، او دا فکر نشته چه حلال دے که حرام۔ انا لله وانا الیه راجعون۔

حدیث کښ راځی چه «هره غوښه چه د حرامو نه پیدا شوی وی، نو اُور به ئے ضرور سیزی»۔

(رواه احمد والدارمی)

بل روایت کښ راځی: «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ جَسَدٌ غُذِيَ بِالْحَرَامِ»۔

(بیهقی، مشکوة، الحدیث صحیح السلسلة الصحیحة: ۲۶۰۹)

(جنت ته به نۀ داخلیږی هغه جسد او بدن چه په حرامو لوئی شوے وی او خوراك د حرامو ورکړے شوے وی)۔

نو ځان ساتل د حرامونه فرض دی او که څوك په آخرت ایمان لری، نو د حرامونه دے ځان اُوساتی ځکه چه د حرامو په وجه اِنسان اُور ته داخلیږی۔

## ٥٧- په اودس او په دُعا کښ زیاتے کول :

د عبد الله بن مغفل ﷺ نه روایت دے چه دهٔ د خپل ځوی نه واوریدل چه داسے دعائے کوله :

« اَللّٰهُمَّ اِنِّی اَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الْاَبْیَضَ عَنْ یَمِیْنِ الْجَنَّةِ، فَقَالَ : اَیْ بُنَیَّ سَلِ اللّٰهَ الْجَنَّةَ وَتَعَوَّذْ بِهٖ مِنَ النَّارِ فَاِنِّیْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ یَقُوْلُ اِنَّهٗ سَیَكُوْنُ فِیْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ قَوْمٌ یَعْتَدُوْنَ فِی الطُّهُوْرِ وَالدُّعَاءِ»۔

(رواه احمد وابوداود وابن ماجه وسنده صحیح)

(اے الله ! زه تا نه د جنت په ښی طرف کښ یوه سپینه بنګله غواړم نو عبد الله بن مغفل (ﷺ) ورته اُوفرمایل : اے ځویه ! د الله نه د جنت سوال کوه او د اُور نه پناه غواړهٔ، (او نور تکلفات مهٔ کوه) ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمایل ئے : «زر دے چه پدے اُمت کښ به داسے خلق راشی چه په اوداسه او دعاء کښ به زیاتے کوی»۔

مطلب دا شو چه د دعاء طریقے به بدلے کړی او په دعاګانو کښ به تکلفات کوی۔

او دا قسم تخصیصات چه اے الله ! په جنت کښ بنګله او سپینه او ښی طرف ته راکړه، داسے پیغمبر نهٔ دی کړی، نو تهٔ هم داسے مهٔ

کوه۔

او بل روایت کښې راځی چه عبد الله بن مغفل ﷺ به په نسبت د نورو صحابه کرامو بدعت ډیر بدګڼړلو۔

بیا په اودس کښې د زیاتے کولو مطلب دا دے چه انسان اِسراف پکښې اُوکړی، ډیرے اوبۀ استعمال کړی، یا څلور پنځه ځله اُوبه په اندامونو واچوی، ځکه چه حدیث کښې راځی څوك چه داسے زیاتے کوی نو هغه ظلم اُوکړو او بد ئے اُوکړل۔

نن اُوګوره چه څو مره اِسرافونه په اودس کښې کیږی، او اسراف لا څۀ کوے چه د اودس په صحیح طریقه هم څوك نۀ پو هیږی۔ الا من شاء الله۔

ددے وجه نه نیکان خلق په لوټو اَودس کوی چه اِسراف رانه چرته اُونۀ شی او همدا صحیح طریقه ده۔

او په دُعا کښې زیادت دا دے چه انسان خلافِ سنت دُعا کوی لکه بعضِ خلق د سنت مانځه نه پس دُعا کوی په جمع سره، حال دا چه دا په دین کښې نۀ ده ثابته۔ یا غلط سوالونه کوی، یا په جهر سره چغے وهی، یا به هغه الفاظ اِستعمالوی چه الله او رسول پرے نۀ راضی کیږی، شِرکی الفاظ به په خپله دُعا کښې استعمالوی، لکه بعضِ وائی چه الله او پیر بابا ډے مَل شۀ۔ ځه په الله او په کاکا صاحب ډِے سپارم او الله او رسول ډے اُوو هه۔ او الله او لوئی ځوان ډِے مددګار شه۔ دا ټولے د شرك كلمے دی، ځان ترے ساتل ضروری دی، دُعا د سنت مطابق پکار ده۔ او د دعا متعلق مونږ یو کتاب په

نوم د (مصیبتونو علاج) لیکلے دے، تاسو ئے ضرور مطالعه کړئ۔ ان شاء الله مفید به وی۔

## ۵۸- اکثر خلق به په شان د بُوسو شی

د مِرداس اسلمی رضی الله عنه نه روایت دے فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: «یَذْهَبُ الصَّالِحُونَ الْاَوَّلُ فَالْاَوَّلُ، وَتَبْقٰی حُفَالَةٌ کَحُفَالَةِ الشَّعِیْرِ اَوِ التَّمْرِ لَا یُبَالِیْهِمُ اللّٰهُ بَالَةً» (رَوَاهُ الْبُخَارِیُّ)

(اولنی نیکان خلق به ختم شی (مړهٔ به شی) او ردی خلق به پاتے شی په شان د ردی وُربشو یا د ردی کهجورو، الله تعالیٰ به په دوی هیڅ باك نهٔ کوی) یعنی دُعا به ورله نهٔ قبلوی، او په عذاب ورکولو ئے څه باك نهٔ لری۔

نن اُوګوره چه اکثر خلق داسے شوی دی۔ د نیکئ هیڅ نبنه هم په کښ نشته، نورے نیکئ څه کوے چه ایمان نشته، مونځ څومره لوئی عبادت دے د هغے نه اکثر خلق اِعراض کونکی دی، پاتے نهٔ شو مګر بُوس، او هغه سو چه مسلمانان کم پاتے شوی دی، احوالو کښ ډیر تغیر پیدا شویدے۔

## ۵۹- په قرآن کریم به خلق سوال شروع کړی

عمران بن حصین رضی الله عنه په یو قصه کو مُلا باندے تیر شو چه قرآن کریم ئے لوستلو، او بیا ئے پرے سوال کولو نو هغه انا لله وانا الیه راجعون اُوویل او بیا ئے اُوفرمایل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه

اوریدلی دی چه فرمایل ئې: «مَنْ قَرَءَ الْقُرْآنَ فَلْيَسْأَلِ اللّٰهَ بِهٖ فَاِنَّهٗ سَيَجِيْئُ اَقْوَامٌ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْآنَ يَسْأَلُوْنَ بِهِ النَّاسَ»

(رواه احمد والترمذی :۱۷۲۹) کذا فی الصحیحة : ۲۵۷ بسند حسن)۔

(چا چه قرآن ولوستلو نو د الله نه دِې سوال پرې کوی ځکه چه زر دې چه داسې خلق به راشی چه قرآن کریم به وائی او د خلقو نه به پرې سوالونه کوی)۔

مطلب دا شو چه عمران رضی الله عنه هغه سړې منع کړو د سوال نه په ذریعه د قرآن کریم، او دا ئې اُوفرمایل چه دا خو د غلطو خلقو کار دې۔ اِنسان چه کله قرآن اُووائی نو الله ته نزدې شی، نو دۀ له سوال د الله نه پکار دې، نۀ د مخلوق نه، ځکه چه مخلوق سره څۀ دی؟ هغوی له هُم مال الله ورکړیدې، نو د حقیقی ذات نه ئې ولې نۀ غواړی، او قرآن او حدیثو والاله خو ډیره استغناء پکار ده په نسبت د نورو خلقو ځکه چه علم لوئی دولت دې، او دُنیا په نسبت د قرآن هیڅ شې نۀ دې۔

## ٦٠- بې ضرورته به خلق ګیرې تورَوِی

د عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: «يَكُوْنُ قَوْمٌ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ يَخْضِبُوْنَ بِهٰذَا السَّوَادِ كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ لَايَرِيْحُوْنَ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ»

(رواه ابوداود (۴۲۱۲) والنسائی :۵۰۷۵)

(په آخره زمانه کښې به داسې خلق وی چه ویختۀ به په تور رنګ

نورَوی لکه د گونترو د ججورو په شان (یعنی لکه د کونترو ججورے چه څرنګه تورے وی، دا شان به ئے تورَوی)، نو دوی به د جنت بوئی هم بیا نهٔ مومی)۔

دے حدیث نه معلومه شوه چه ویختهٔ تورول گناه ده، لیکن علماؤ وئیلی دی چه که د مرض د وجه نه د چا ویختهٔ سپین شوی وی، نو بیا تور رنګ استعمالول جائز دی۔

او تکے سپینے ګیرے له نکریزے یا د نکریزو په شان رنګ ورکول سنت طریقه ده۔ پدے باندے امام نوویؒ په مسلم کښې باب ایخودے دے۔او نور رنګونه ورکول هم جائز دی خو چه تور نهٔ وی۔

او همدارنګه مجاهِد سړی له تور رنګ استعمالول جائز دی، خو هغه سړی له مکروه دی چه بوډا وی او خلقو ته دهوکه ورکوی چه ځه خو ځوان یم۔

او حدیث کښې راځی چه سپین ویخته خو د مسلمان دپاره عزت او وقار دے نو بے ځایه تورَول دا د خپل عزت زائل کول دی۔

جابر بن عبد الله رضی الله عنهما فرمائی :

«أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثُّغَامَةِ بَيَاضًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ : غَيِّرُوا هٰذَا بِشَيْءٍ وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ»

[مسلم کتاب اللباس : ۲۱۰۲]

(د مکے د فتح په ورځ ابو قحافه (رضی الله عنه د ابوبکر صدیق پلار) راوستے شو، د هغه سر او ګیره د ثغامه (سپین ګلونو والا بوټی) په شان سپینه وه نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : دا سپینوالے بدل کړئ

لیکن د توروالی نه ځان اُوساتئ)۔

ددې نه ثابته شوه چه صرف تور رنګ ورکول ممنوع دی او باقی هر قسم رنګونه استعمالول جائز دی۔

## ٦١– مړی پسې په زوره ژړا کول :

ابو مالك اَشعری ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمايلی دی :

«اَرْبَعٌ فِیْ اُمَّتِیْ مِنْ اَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يَتْرُكُوْنَهُنَّ الْفَخْرُ فِی الْاَحْسَابِ وَالطَّعْنُ فِی الْاَنْسَابِ، وَالْاِسْتِسْقَاءِ بِالنُّجُوْمِ وَالنِّيَاحَةُ وَقَالَ النَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ» [رواه مسلم]

(څلور شيان دی زما په اُمت کښ چه هغه د جاهليت د زمانې ميراث دې او دوی به هغه نهٔ پريدی (ضرور به ئې کوی) : ١– يو په خپل حسب او عزت باندې فخر كول۔ ٢– دويم : د خلقو په نسب باندې طعن وئيل، (لکه خلق وائی تهٔ د فلانکی ځوی او تهٔ فلانکی خيل ئې)۔ ٣– او بل : باران به غواړی په ستورو سره۔ ٤– او څلورم دا چه په زوره به ژړا کوی (په مړی پسې)۔

او فرمائيلې ئې دی چه وير کرې ښځې که د مرګ نه مخکښ توبه اُونه ويستله نو قيامت کښ به ورته د رنزړو قميص واغوستلې شی، يا قميص د خارخ) الحديث۔

رنُزړهٔ يوه بدبويه دوائی ده چه په هغې سره د خارخ په وخت اُوښان غوړوی۔

اُوګوره چه طعنونه په یو بل باندے څومره زیات دی، او خلق په نجومیانو څومره عقیدهٔ لری، او همدارنګه وِیرکونکی خو بیشماره دی، خصوصاً شیعه ګان خو په دے کښ داخل دی۔ دا څُویونه د جاهلیت والا دی، ځان ترے ساتل ضروری دی۔

## ٦٢- په دروغه ګواهی به ورکیدے شی

عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : « غوره په زمانو کښ زما زمانه ده، بیا هغه خلق چه د هغوی پسے دی (یعنی د تابعینو زمانه) بیا هغه چه د هغوی پسے دی (یعنی اتباع التابعین) بیا به داسے خلق راشی چه قَسم به ئے د ګواهئ نه مخکښ کیږی او ګواهی به ئے د قَسم نه مخکښ کیږی» ۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

مطلب دا دے چه په دین کښ به څه باك نهٔ کوی که په غلطه روان شو او که په صحیح لاره، څه پرواه به نهٔ لری۔ صرف د خپل مال پرواه به لری، او یا مطلب دا دے چه په دروغه به ګواهی ورکوی او په دروغه به قَسمونه کوی۔ (لمعات)۔

## ٦٣- د کانړو باران به کله کیږی ؟

عمران بن حصین رضی الله عنه فرمائی : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : «زما په اُمت کښ به په خلقو د کانړو باران کیږی او شکلونه به ئے مسخ کیږی، او څه خلق به په زمکه ډوبیږی، چا تپوس اوکړو اے د الله رسوله ! دا به کله وی؟ هغه اُوفرمایل : «چه کله تنک

تهکور، باجے، سورنا ښکاره شي او ډمے ډیرے شي، او شراب څکل شروع شي»۔

(رواه ابن النجار كذا في الكنز ١٤/٥٥٨ وتحريم آلات الطرب للالباني ٦٣)

ددے علامو ذکر وړاندے تیرے شوید ے۔

## ٦٤– د رعب والا چه ختم شي نو قیامت به نزدے وي۔

عبد الله بن بسر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ صحابيٌ فرمائی چه مونږ دا خبره اَوریدلے چه کله شل کسان یا زیات یا کم راجمع شي او په دوی کښې داسے سړے نۀ وي چه د هغه نه یَره کیدے شي د وجِه د یرے د هغه د الله تعالیٰ نه۔ نو قیامت به رانزے وي۔

[احمد : ١٧٧١٥) والطبرانی واسناد احمد جید، قاله المناوی وشعیب الارناووط]

مطلب دا دے چه کله یو انسان د الله نه یریږی نو الله رب العزت خلق د هغه نه یَروی، په خلقو رعب راځی چه کله ورسره ملاوشی لکه د رسول الله ﷺ په صفاتو کښې راځی چه کله به ورسره انسان ملاؤ شو، نو رُعب به پرے راتلو، ځکه چه قانون دا دے چه کله اِنسان د الله تعالیٰ د خبرے عزت کوی نو خلق به د هغه د خبرے عزت کوی او کله چه د الله نه یریږی، نو خلق به د هغه نه یریږی، نو چه کله شل کسان یا زیات یا کم وی او په هغوی کښې یو کس د الله نه یریدونکے نۀ وی نو قیامت به رانزدے وی۔

زۀ وایم چه نن صبا که زر کسان راجمع شي، او ته په کښې متقي سړے ګورے، نو ستړے به شے او پیدا به ئے نکړے، او که یو لوئی

جامع مسجد تـه داخـل شي نو یو خاشع (خشوع والا) به پیدا نهٔ کړي، لکه دا خبره عباده بن صامت ﷺ فرمائیلې ده۔ ترمذي شریف کښې راځي۔ والله اعلم۔

او دې باره کښې زما یوه رساله د (مصیبتونو علاج) اُوګوره په هغې کښې پوره تشریح ده۔

## ٦٥- خشوع به ختمه شي

### او د پنځو مونځونو نه به انکار شروع شي :

حُذیفه ﷺ فرمائي : «اول هغه شې چه تاسو به ئې د دین نه ورك کړئ هغه خشوع ده، او آخري شې چه تاسو به ئې د دین نه ورك کړئ هغه مونځ دې، او د اسلام کړئ به یو یو ماتیږي، او زنانه به مونځ کوي په حالت د حیض کښې او تاسو به د پخوانو د لارو پسې روان شئ، لکه یوه څپلۍ چه د بلې څپلۍ سره برابره وي، او د هغوي یوه لاره به تاسو پرې نږدئ تردې چه دوه ډلې به پاتې شي په ډیرو ډلو کښې، یوه ډله به وائي : پنځه مونځونو ته څه حاجت دې، مخکینی خلق خو ګمراه وو، درې مونځونه پکار دي، ولې قرآن کښې راځي :﴿اَقِمِ الصَّلاَةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفاً مِنَ اللَّيْلِ﴾ (الآية) (د ورځې په دوه طرفونو کښې د مانځه پابندي کوه اې پیغمبره! او په حصه د شپـه کښې هم کوه) او بله ډله به وائي چه د مؤمنانو ایمان په شان د ایمان د ملائکو دې، یو کس هم په مونږ کښې کافر نهٔ شته او نهٔ منافق شته۔ حُذیفه ﷺ فرمائي : چه الله تعالیٰ به په قیامت کښې

داسې خلق خامخا د دجال سره پاڅوی)۔

(رواه الحاكم في المستدرك وقال الذهبي صحيح : ٤/٤٦٩)

لکه نن صبا یوه ډله پیدا شوې ده چه پرویزیان ورته وائی، هغوی حدیث د رسول الله ﷺ د قرآن کریم تشریح او وحی نهٔ منی، نو صرف دوه مونځونه منی او نور نهٔ منی۔

دویمه ډله به د ایمان دعوه کوی لیکن دا به هسې د ایمان دعوه وی او حال دا دې چه کافر منافق به وی، لکه دا حال نن موجود دې، دهریان خلق د اِسلام چغې وهی، او ځان ته کامل مسلمانان وائی۔

## ٦٦- صله رحمی به قطع کړې شی

او ګاونډیان به یو بل سره بد اخلاقی شروع کړی۔

د عبد الله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «قسم په هغه ذات چه زما روح د هغه په لاس کښې دې، قیامت به نهٔ راځی تردې چه ښکاره شی فحش او تفحش، او د ګاونډی سره بدسلوکی کول، او خپلولی قطع کول، اوتردې چه امانتګر به خائن ګڼړلے شی او خیانتګر به امانتګر ګڼړلے شی»۔ الحدیث۔

[مسند احمد :٦٥١٤) مستدرك، وقال الذهبي وشعيب الارناووط صحيح]

اُوس اُوګوره چه فحاشی او بې حیائی څومره بې حسابه ده، او ګاونډی، سره اِحسان خو لا پریده خلق هغه ته تکالیف ورکوی، خپله ونډه چرته [illegible] اُوشی، او د یو بل حق نهٔ پیژنی او حال دا دې چه د ګاونډی به باره کښې،

ځـومـره ډیـر احـادیث راغلي دي او قرآن کریم کښې هم الله تعالیٰ د ګاونډي سره په احسان کولو حکم کړیدے۔

او صلـه رحمـی نـن صبـا خـلق د دوه پیسو په وجـه مـاتَوي او ختـموي، او صلـه رحمي کول فرض دي، او حدیث کښې راځي چه صله رحمي قطع کونکے جنت ته نشي۔ او د لیلة القدر په شپه هم صلـه رحمـي قـطـع کـونـکي ته معافي نۀ کیږي۔ لیکن احوال د زمانے بدل شو۔

## ٦٧- په خلقو کښې به څورب والے ښکاره شي

عمران بن حصین ؓ فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «غـوره زمـانـه ځما ده بیا د د هغـه کسانو چـه د هغوی پسے دي (یـعـنـی تـابـعـیـن)، بیـا هـغـه چـه د هغوی پسے دي (یعنی د اتباع التـابـعیـن) بیـا بـه داسے خلق راشي چه ګواهي به کوي او څوك به تـرے د ګواهي طلب نۀ کوي۔ (یعني د ځان نه به ګواهي کوي او په دروغو به څه باك نۀ کوي او همدارنګ) خیانت به کوي او د امانت حفـاظـت بـه نـۀ کـوي، او نذرونـه بـه کـوي (پـه ځان بـه څـه شیان واجبـوي) او بیـا بـه پـرے وفـاداري نـۀ کـوي، او څورب والے به پکښې ښکاره شي»۔

پـه بل روایت کښې راځي چه «داسے خلق به راشي چه د څورب والي سره به مینه کوي چه زۀ غټ وے او څورب وے نو څومره به ښۀ وے»۔ (بخاريؒ و مسلمؒ)

م طلـ ب ئ ل ـ . چه ډیر خوراک به کوي، او د خوراکونو سره به

مینه کوی، دے دپاره چه غټ شی، او بعضِ محدثین وائی چه مطلب دا دے چه مال به جمع کوی او د دین نه به غافل وی، او یا به ځان غټ گنړی په شرافت او عزت سره او حال دا دے چه دا به پکښې نهٔ وی۔

## ٦٨۔ څهٔ قبیلے به د مشرکانو ملگری شی

د ثوبان رضی الله عنه اِرشاد دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

«کله چه توره زما په اُمت کیخودے شی (یعنی جنگ شروع شی) نو تر قیامته به اُوچته نهٔ شی۔ او قیامت به نهٔ راځی تردے چه زما د امت نه څه قبیلے د مشرکانو سره یو ځائے نهٔ شی او تردے به قیامت نهٔ راځی چه زما د اُمت څه قبیلے د بتانو عبادت شروع نهٔ کړی۔ او زر دے چه زما اُمت کښې به دیرش (۳۰) دروغژنان پیدا شی چه هر یو به دا دعویٰ کوی چه زهٔ د الله پیغمبر یم» او نبی علیه السلام فرمائی : «زهٔ خاتم النبیین یم، ما نه روستو بل پیغمبر نشته، او زما د اُمت نه به یوه ډله په حق ولاړه وی، که څوک ترے خلاف کوی نو هغوی ته به څه ضرر نهٔ ملاویږی (یعنی هغوی خپل کار نهٔ پریږدی) تردے چه قیامت راشی»۔

(ابوداودؒ، ترمذی ۲۲۰۲) بسند صحیح)۔

توره به اُوچته نشی مطلب دا دے چه خامخا به څه نه څه جنگ وی لکه د عثمان رضی الله عنه د زمانے نه تر اُوسه پورے یوه زمانه هم د جنگ نه خالی نهٔ ده تیره شوے)

او پدے امت کښ ډیر خلق د کافرانو سره ملګرتیا شروع کړه لکه ډیرو ملکونو د رُوس او ملګرتیا شروع کړه او کفرئے اختیار کړو۔

د بتانو عبادت خو نن ډیر زیات دے، لکه هندوان او په نوم مسلمانان د قبرونو عبادت کوی، او نور هم داسے واخله۔

## ٦٩- د قرآن غلط تاویل والا به پیدا شی

د عائشےؓ نه روایت دے فرمائی چه رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړو: ﴿هُوَ الَّذِیْ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آیَاتٌ مُحْكَمَاتٌ﴾ تردے آیت پورے ئے اُولوستلو۔ ﴿وَمَا یَذَّكَّرُ اِلَّا اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ (ترجمه : الله هغه ذات دے چه راوے لیږلو په تا باندے کتاب بعض آیتونه ددے کتاب محکم دی او ظاهر مراد والا دی او بعضِ آیتونه متشابه او پټ مراد والا دی، نو اهل زیغ خلق باطل پرست مبتدعین خلق د هغه آیتونو پسے ځی چه متشابه دی د خپلے غلطے عقیدے د ثابتولو دپاره او حال دا دے چه د هغه آیتونو په معنیٰ سِوا د الله نه بل څوك نهٔ پوهیږی، او نصیحت نهٔ اخلی مګر خاوندان د عقل)۔

بیا ئے اُوفرمایل : «کله چه تا اُولیدل ؟» یا ئے داسے اُوفرمایل : «کله چه تاسو هغه کسان اُولیدل چه د متشابه آیتونو پسے روانِ دی، نو دا هغه کسان دی چه الله ورله په قرآن کښ اهلِ زیغ نوم ایښے دے نو ځان ترے وُساتئ»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

یعنی داسے خلق به پیدا شی چه د قرآن صریح آیتونه به پریږدی او د متشابهاتو پسے به روان وی، او مطلب به ئے دا وی چه

خپله غلطه عقیده او غلط مذهب ترے ثابت کړی، لکه نن اُوګوره بریلویان بنکاره آیتونه چه دلالت کوی چه پیغمبر بشر دے، اِنسان دے، خو دوی هغه پریدی او کله چه د نُور لفظ راغلے وی، نو دوی ترے خپله عقیده ثابتوی۔

همدارنګه دا مسئله قرآن کریم واضحه بیان کړے ده چه سِوا د الله نه څوك په غیبو نهٔ پو هیږی، لیکن بریلوی او د هغوی همنوا خلق وائی چه پیغمبران لا څه کوے چه اولیاء کرام هم په غیبو عالمان دی، او د قرآن کریم د متشابهاتو نه ورله دلیل پیش کوی، ولکه قرآن کریم کښ ﴿ اُدْعُوْا رَبَّكُمْ﴾ راغلے دے، نو مبتدعین وائی چه دُعا چه څرنګے غواړے او څه وخت ئے غواړے جائز ده، سونږ وایو چه دُعا عبادت دے، او د عبادت چَل او وخت دواړه به د رسول الله ﷺ نه زده کوو، د ځان نه ورله وخت مقررول او د ځان نه ورله طریقه جوړول بدعت دے، او دارنګه ټول باطل پرست لکه پرویزیان، قادیانیان، دهریت والا شو، دوی د قرآن نه آیتونه وائی او غلط مطلب ترے اخلی او پدے طریقه خلق ګمراه کوی۔ رسول الله ﷺ رشتیا وئیلی دی۔

## ۷۰- بازارونه به نزدے نزدے شی

ابو هریره ﷺ فرمائی، رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

«لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰی تَظْهَرَ الْفِتَنُ وَيُكْثَرَ الْكَذِبُ وَتَتَقَارَبَ الْاَسْوَاقُ وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ» [مسند احمد ۵۱۹/۲) صحیح ابن حبان (۶۷۱۸)

الصحیحة : ٦٣٩/٦) رقم (٢٧٧٢)۔

(قیامت به تر هغه وخت پورے نۀ قائمیږی چه فتنے راښکاره شی او دروغ زیات شی او بازارونه یو بل ته نزدے نزدے شی او زمانه لنډه شی)۔

**تشریح** : د فتنے سیلابونه موجود دی، او د دروغو خو هیڅ انتهاء نشته، سرکاری او بین الاقوامی دروغ په اخبارونو کښې موجود دی۔ د دروغو خورولو دپاره این جی اُوز جوړ شویدی چا مسلمانانو کښې شرونه او دروغ خبرونه خوروی۔ او د بازارونو نزدے کیدل خو د هیچا نه پټ نۀ دی، په کلو کښې هم بازارونه آباد دی او په ښاریو کښې خو تقریباً په هره کوڅه کښې بازار بازار دے۔ یو بل سره انختے بازارونه دی۔ دا د قیامت علامے دی چه بالکل صادق او رشتینی شویدی۔

## ٧١- رشتینی خوبونه :

ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

((إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ لَمْ تَكَدْ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ تَكْذِبُ))

[بخاری کتاب التعبیر:٧٠١٧]

(کله چه زمانه نزدے راشی نو د مؤمن خوبونه به نۀ دروغجن کیږی)۔

یعنی قیامت ته نزدے به د مؤمنانو خوبونه غالباً رشتینو خیژی او کوم خوب چه اُووینی نو هغه به ضرور یوه حقیقو

معنیٰ لري۔ چه په هغې کښ به اشارات وی ایمان والو ته چه داسے کارونه اختیار کړئ او د داسے کارونو نه ځان اُوساتئ۔

## ۷۲- د قریشو زر ختمیدل :

ابو هریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :
((أَسْرَعُ قَبائِلِ الْعَرَبِ فِنَاءً قُرَيْشٌ وَيُوشِكُ أَنْ تَمُرَّ الْمَرْأَةُ بِالنَّعْلِ فَتَقُوْلُ: إِنَّ هٰذَا نَعْلٌ قُرَشِيٌّ)) (مسند احمد ۳۳٦/۲، السلسلة الصحيحة (۷۳۸)۔

(د عربو د قبیلو نه به د ټولو نه اول ختمیدونکے قبیله د قریشو وی او نزدے ده چه یوه زنانه به په یوه څپلۍ (چپړه) تیره شی او وائی به چه : دا د فلانی قریشی څپلۍ ده)۔

۷۳- حیوانات او جمادات به د انسانانو سره خبرے اُوکړی :

قیامت ته نزدے به حیوانات او جمادات د انسانانو سره خبرے کوی۔

ابو سعید خدری ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :
((وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يُكَلِّمَ السِّبَاعُ الْإِنْسَ وَيُكَلِّمُ الرَّجُلَ عَذَبَةُ سَوْطِهٖ وَشِرَاكُ نَعْلِهٖ وَيُخْبِرُهٗ فَخِذُهٗ بِمَا حَدَثَ أَهْلُهٗ بَعْدَهٗ))
[مسند احمد ۸٤/۳) الصحيحة [۱۲۲]

(قسم په هغه ذات چه زما نفس د هغه په لاس کښ دے، د قیامت د راتلو نه مخکښ به درندگان د انسانانو سره خبرے کوی او د انسان سره به د هغه چابك او د هغه د څپلۍ تسمه خبرے کوی او هغه ته به د هغه ورون (پتون) خبر ورکوی چه د هغه نه روستو د هغه کور والا څه کړیدی)۔

**تشریح** : ددے حدیث مطلب به په هغه وخت ښه واضحه کیږی چه کله دا کارونه خپله موجود شی چه درندګان د انسانانو سره خبرے شروع کړی او چابك او تسمه او پتون خبرے اُوکړی۔
او ددے دا مطلب هم کیدے شی چه د انسان په جیب کښ موبائل فون موجود وی، هغه ورسره خبرے کوی چه ستا کور کښ څه کار شویدے، کورنه ورته فون اُوشی چه راشه کور کښ فلانے کار اُوشو۔
زهٔ د الله تعالیٰ د ذاتِ اقدس نه دا دُعا په ډیره عاجزیٔ او تضرع سره غوارم چه ما او زما ملګری او دوستان او ټول مؤمنان موحدین د ښائسته صفاتو والا اُوګرځوی او خصوصاً طلباء او علماء۔ او ددے رسالے لیکونکی او مطالعه کونکی او چهاپ کونکی ډے هم پخپل رحمت سره په زُمره د متقیانو کښ حساب کړی۔ آمین۔
وَهٰذَا آخِرُ مَا اَرَدْنَا فِیْ هٰذِهِ الرِّسَالَةِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی اِتْمَامِهَا وَهُوَ نِعْمَ الْمَوْلٰی وَنِعْمَ النَّصِیْرُ. تَمَّ الْجُزْءُ الْاَوَّلُ وَیَلِیْهِ الْجُزْءُ الثَّانِیْ.

ooooooo

بسم الله الرحمن الرحیم

## د اشراط الساعة دویمه حصه

دې حصه کښې به هغه علامات بیانیږي چه هغه نن صبا موجود شوې نهٔ دي او نزدې ده چه رابښکاره شي۔

### ۱ – مَهْدِیْ رحمة الله علیه به راځي :

د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی : «لَا تَذْهَبُ الدُّنْیَا حَتّٰی یَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ بَیْتِیْ یُوَاطِئُ اسْمُهٗ اسْمِیْ» (ترمذی، ابو داود)۔

(دنیا به نهٔ ختمیږي تردې چه رابه شي یو سړې چه په عربو به بادشاهي کوي، (او د هغوی چه څوك تابعدار دي)، او دا سړې به زما د اهلِ بیتونه وي، او نوم به ئې زما د نوم سره مطابق وي»۔ او بل روایت کښې راځي : «که د دنیا نه هیڅ پاتې نهٔ شي مګر یوه ورځ هم نو دغه ورځ به الله تعالیٰ اوږده کړي، تردې چه الله تعالی به یو سړې راولیږي چه نوم به ئې زما د نوم په شان وي، او د پلار نوم به ئې زما د پلار د نوم په شان وي، زمکه به د عدل او انصاف نه ډکوي، لکه چه څرنګه د ظلم او د بې انصافئ نه ډکه شوې ده»۔

بل روایت کښې دي : «مهدی به زما د اولادو نه وي، یعنی په اولادو د فاطمه کښې به وي» (ابو داودؒ)

بل حدیث کښې راځی: «رونړ تندی والا به وی، او اُوچتې پوزې والا به وی، اُووه (۷) کاله بادشاهی به کوی».
بل روایت کښې دی: «چه ډیر سخی به وی، تردې چه سړی له به دومره مال ورکوی څومره چه دې په خپله جامه کښې وړې شی».
بل روایت کښې دی: «چه د هغه په وخت کښې به بارانونه ډیر کیږی او گیاه گانې بوټی به ډیر وی، آسمان والا به ترې خوشحاله وی». دا مفهوم د ډیرو حدیثونو نه واضح شویدې.
(مشکوٰة)
لهذا مهدیؑ یو حقیقت لری، څوك چه ترې انکار کوی نو هغه د سنتِ رسول نه منکر دې، لکه دې وخت کښې بعضِ ظالمان شته، چه هغوی د مهدیؑ نه انکار کوی. استغفر الله.

## ۲- دجال به راځی

عمران بن حصین رضی الله عنه فرمائی: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه فرمایل ئې: «مَا بَیْنَ خَلْقِ آدَمَ إِلٰی قِیَامِ السَّاعَةِ أَمْرٌ أَکْبَرُ مِنَ الدَّجَّالِ»
[رواه مسلم]
(نشته په مابین د آدم علیه السلام د پیدائش کښې او د قیامت راتلو کښې یو شې چه لوی (سخت) وی د دجال نه».
یعنې د دجال د راتلو په شان مصیبت بل نشته صرف د قیامت ورځ ده چه د هغې مصیبت د دجال نه هم سخت دې.
بل روایت کښې دی چه دجال سره به اُور هم وی، او اُوبه به ورسره

هم وی، پس اُویـه د هغه اُور دے، او اُورئے یخے اوبه دی، څوك چه ورسره ستاسو نه ملاؤ شو، نو په هغه اُور کښې ډے ځان واچوی، ځکه چه هغه یخے مزیدارے اوبه دی، دا مفهوم د احادیثو دے۔ (مشکوة)

بل روایت کښې راځی چه زهٔ تاسو ته یوه خبره کوم چه هغه نورو انبیاؤ خپلو قومونو ته نهٔ ده کړے په باره د دجال کښې۔ هغه دا ده چه دجال کانړے دے او الله تعالیٰ کانړے نهٔ وی، یعنی دجال به د اُلوهیت دعویٰ کوی نو تاسو به ئے په دے پیژنئ چه کانړے دے، خپله سترګه نهٔ شی جوړولے، او بل دا چه په تندی باندے به ئے (ك، ف، ر) لیکلے شوی وی۔ یعنی کافر به پرے لیکلے شوی وی چه هر مؤمن به هغه لوستلے شی، که خط ورځی او که نه ورځی، (کذا فی الاحادیث) د دجال د راتلو په باره کښې احادیث متواتره موجود دی، کتابونه د حدیثو ترے ډك دی۔ (بخاری مسلم، ابوداود، ترمذی مشکوٰة وغیره) دریمه حصه ددے کتاب کښې ئے تفصیل اُوګوره۔

## ۳- عیسیٰ علیه السلام به راځی

ابو هریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اِرشاد فرمایلے دے:
«قسم په هغه الله چه زما روح د هغه په لاس کښې دے، نزدے ده چه په تاسو کښې راشی ځوی د مریم فیصله کونکے عادل، پس صلیب به مات کړی»۔(یعنی نصاراؤ د ځان نه یو شے جوړ کړیدے

او وائی چه زمونږ عیسیٰ علیه السلام په سُولیٔ شوے دے، نو دوی د هغه د سولیٔ شکل جوړ کړیدے، او عبادت ورله کوی نو عیسیٰ علیه السلام چه راشی نو دا شکل به مات کړی) «او خنزیران به قتل کړی». (یعنی د عیسایانو دین به ختم کړی او د نبی علیه السلام دین باندے به فیصلے کوی) «او جزیه به هم لرے کړی، او مال به ډیر شی تردے چه هیڅوك به بیا مال نهٔ قبلوی تردے چه یوه سجده عبادت به د ټولے دُنیا او دُنیا کښ چه څهٔ دی د هغے نه به بهتره شی». الحدیث۔

په بل روایت د عبد الله بن عمرو رضی الله عنه کښ راځی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: «عیسیٰ ابن مریم (علیه السلام) به زمکے ته راکوز شی، نو نکاح به اُوکړی، او بچی به ئے هم پیدا شی، او پنځه څلویښت کاله به په دُنیا کښ درنګ تیره وی، بیا به وفات شی، نو زما په مقبره کښ به دفن کړے شی، نو د قیامت په ورځ به د ابوبکر او د عمر په مینځ کښ زهٔ او عیسیٰ (علیه السلام) د یوے مقبرے نه راپاڅو. (الوفاء لابن الجوزی)

بل روایت کښ راځی چه «همیشه به یوه ډله زما د امت نه جنګ کوی په حق باندے او غالب به وی نزدے تر قیامته پورے. پس عیسیٰ علیه السلام به راکوز شی نو د مسلمانانو اَمیر به اُووائی چه راشه مونږ ته مونځ اُوکړه، هغه به اُوفرمائی چه نهٔ بعضِ ستاسو نه به په بعضو امیران وی، ځکه چه الله دے اُمت له زیات کرامت او عزت ورکړیدے». (مسلم)

## ٤ – وحوش، حیوانات او جمادات به خبرے شروع کړی۔

ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی، رسول الله ﷺ فرمایلی دی:
«وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰی تَکَلَّمَ السِّبَاعُ الْاِنْسَ وَحَتّٰی تَکَلَّمَ الرَّجُلَ عَذْبَةُ سَوْطِهٖ وَشِرَاكُ نَعْلِهٖ وَیُخْبِرُهٗ فَخِذُهٗ بِمَا اَحْدَثَ اَهْلُهٗ بَعْدَهٗ» (ترمذی وصححه الالبانی)

(قَسم په هغه ذات چه زما نفس د هغه په لاس کښ دے چه قیامت به نۀ راځی تردے چه خبرے به اُوکړی د انسانانو سره درندګان، او تردے چه خبرے به اُوکړی د سړی سره طرف د چابك ددۀ او تسمه د کیړئ (څپلئ وغیره) ددۀ، او خبر به ورکړی سړی ته وُرون (پتون) ددۀ په هغه څه چه ددۀ کور والو دده د غائب کیدو ددۀ نه پس کړی وی)۔

یعنی اَحوال به بدل شی تردے چه د خلقو عیبونه به الله ښکاره کړی، او دا حدیث په حقیقت محمول دے ځکه چه ډیرو حیواناتو د رسول الله ﷺ سره خبرے کړی دی، او د سلیمان علیه السلام سره ئے هم خبرے کړی دی، او د نورو شپونکیانو سره هم شرمخانو خبرے کړی دی، او روستو به هم داسے وخت راځی انتظار کوئ۔

## ٥ – د مغرب نه به نمر راخیژی

ابوذر رضی الله عنه فرمائی کله چه نمر پریوتونو رسول الله ﷺ اُوفرمایل:
«آیا تۀ پو هیږے چه دا نمر چرته ځی؟»۔ نو ابوذر وائی: ما اُووئیل

: چه الله او رسول په دے ښهٔ پو هیږی، (ما ته پته نشته)۔ نو هغه اُوفرمایل : «دا نمر ځی او الله تعالیٰ ته د عرش لاندے سجده کوی او د الله تعالیٰ نه اجازت غواړی نو الله تعالیٰ ورته اجازت کوی، او نزدے ده چه سجده به اُوکړی او سجده به ترے قبوله نهٔ شی او اجازت به وُغواړی او اجازت به ورته وُنهٔ شی، او دا به ورته ووئیلے شی چه واپس شه هغه ځائے ته چه د کوم ځائے نه راغلے ئے۔ نو د مغرب نه به راوخیژی او دا خبره قرآن کریم کښې ذکر ده

﴿ وَالشَّمۡسُ تَجۡرِیۡ لِمُسۡتَقَرٍّ لَّهَا ﴾

(نمر روان دے خپل ځائے د قراریدو ته) (بخاری ومسلم)

د مغرب د طرفه د نمر د راختلو ذکر په ډیرو حدیثونو کښې راغلے دے، بعضِ به روستو ذکر شی او په حدیث د صفوان بن عسال رضی الله عنه کښې راځی چه الله تعالیٰ مغرب طرف ته د توبے یوه دروازه پرانستے ده چه د هغے پلن والے د اوویا (۷۰) کالو په مسافت دے او هغه به تر هغے پرانستے وی چه ترڅو نمر د مغرب نه نهٔ وی راختلے، کله چه نمر د مغرب د طرفه راوُخیژی نو د توبے هغه دروازه به بنده شی»۔ الحدیث

[ریاض الصالحین]

## ٦- دابة الارض به راځی

قرآن کریم کښې ددے علامے ذکر راغلے دے۔ سورة النمل کښې راځی : ﴿ وَاِذَا وَقَعَ الۡقَوۡلُ عَلَيۡهِمۡ اَخۡرَجۡنَا لَهُمۡ دَآبَّةً مِّنَ الۡاَرۡضِ تُكَلِّمُهُمۡ اَنَّ

النَّاسَ كَانُوْا بِآيٰتِنَا لَايُوْقِنُوْنَ ﴾ (الآية)

(کله چه د عذاب فیصله وُشی په دوی نو زهٔ به ورته د زمکے نه یو حیوان راوُباسم، چه هغه به خبرے کوی دوی سره چه خلق زما په آیتونو ایمان نهٔ لری)

حدیث کښې راځی : «بَادِرُوْا بِالْأَعْمَالِ سِتًّا »۔ (جلتی اُوکړئ په نیك اعمالو سره مخکښې د راتلو د شپږ مصیبتونو نه، یو په هغے کښې لوګے دے، لکه دا خبره به روستو راشی۔ دویم دجال دے۔ دریم دابة الارض دے او څلورم نمر د مغرب نه راختل دی او پنځم : عامے فتنے دی۔ او شپږم خپل مرګ دے»۔

(رواه مسلم)

بل روایت کښې راځی چه اول د لوئی علاماتو د قیامت نه د مغرب د طرف نه نمر راختل دی۔ ۲- دویم دابة الارض راتلل په وخت د ضحیٰ (څابښت) کښې او کومه علامه چه مخکښې شوه ددے دوه علامونه نو دویمه به ورپسے نزدے وی»۔

[رواه مسلم : ۲۹٤۱]

بل حدیث کښې راځی چه درے شیان چه کله راشی نو بیا ایمان راوړل او نیك عمل فائده نهٔ ورکوی یو د نمر راختل دی د مغرب د طرف نه، دویم دجال راتلل دی او دریم ددابة الارض راتلل دی»۔

(رواه مسلم)

سیدنا ابوامامه رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[تَخْرُجُ الدَّابَّةُ فَتَسِمُ النَّاسَ عَلٰى خَرَاطِيْمِهِمْ ثُمَّ يُغْمَرُوْنَ فِيْكُمْ حَتّٰى يَشْتَرِيَ

الرَّجُلُ الْبَعِيْرَ فَيَقُوْلُ مِمَّنِ اشْتَرَيْتَهُ ؟ فَيَقُوْلُ : اشْتَرَيْتُهُ مِنْ اَحَدِ الْمُخَطَّمِيْنَ]
(مسند احمد : ٢٦٨/٥) الصحيحة (٣٢٢)۔

(د زمکے نه) به یو حیوان راوځی چه د خلقو په تندو به نخے لګوی او دغه (نخه لګولے شوی) خلق به ډیر شی تردے چه یو سړے به د چا نه اُوښ واخلی نو یو تن به تپوس اُوکړی چه دا دِے د چا نه اخستے دے ؟ نو هغه به جواب ورکړی چه ما دا د یو نخے لګولے شوی سړی نه اخستے دے)۔

علماء کرامو او مفسرین عظامو لیکلی دی چه دا حیوان به د صفا غونډئ نه راوځی او شکل به ئے د انسان وی، او خپے به ئے د اُوښ وی، او څټ به ئے د آس په شان وی، او لکئ به ئے د غوا په شان وی، او ښکرے به ئے د باره سنګهے (زرافه) په شان وی، او لاسونه به ئے د شادو په شان وی، او خلقو سره به په فصاحت سره خبرے کوی او په ټوله دنیا کښ به ګرځی او په مؤمن به هم نشان لګوی چه د هغے په وجه به ئے په مخ کښ رڼړا پیدا شی او په کافر به هم داغ لګوی۔ بیا به غائب شی، نو کافر او مؤمن به بیل جُدا جُدا پیژندے شی۔ (والله اعلم)

علامه جزریؔ په نهایه کښ لیکلی دی : بعض علماؤ وئیلی دی چه دابة الارض به شپیته ګزونه وی، خپے به لری او په بدن به ئے د اُوښانو د وړئ په شان ویښته وی۔ او بعض وائی چه دا مختلف شکلونو والا حیوانانو سره مشابه ده او دا به د صفا غونډی نه راوځی په هغه شپه چه خلق به مزدلفه کښ وی او منیٰ طرف ته

به راروان وی۔ [تحفة الاحوذی ۳٤٤/٦]

## (۷-۸): لوګے به راځی، یا جوج ماجوج به راځی :

حُذیفه بن اُسید الغفاری ؓ فرمائی : چه رسول الله ﷺ په مونږه راښکاره شو او مونږ ناست وو او د قیامت تذکره مو کوله، نو رسول الله ﷺ مونږ ته اُوفرمایل : «د څه تذکره مو کوله ؟ » مونږ اُووئیل : د قیامت۔ نو هغوی اُوفرمایل : «د قیامت ورځ به نهٔ راځی تردے چه تاسو به مخکښ د هغې نه څه نښے او علامے اُووینئ، نو یَو ئے په هغې کښ لوګے ذکرکړو، دویم دجال، دریم دابة الارض، څلورم د مغرب د طرف نه د نمر راختل، پنځم د عیسیٰ ؑ راتلل، شپږم د یأجوج مأجوج راتلل۔ اُوم درے خسفونه یعنی په زمکه ننوتل۔ یو خسف به په مشرق کښ وی او بل به په مغرب کښ وی، او بل به په جزیرة العرب کښ وی، او آخری علامه به دا وی چه یو اُور به د یمن نه راښکاره شی او خلق به خپل محشر ته شړی او روان کړی به ئے وی»۔

او بل روایت کښ راځی چه لسمه دا ده چه یو هواء به را والوزی چه خلق به دریاب ته ګزاروَی ۔ (رواه مسلم)

ددے حدیث بعض جملے مخکښ بیان شوی دی، کومے چه نهٔ دی بیان شوی د هغے تشریح دا ده :

د لوګی راتللو ته قرآن کریم اشاره کړے ده په سورة الدخان کښ : ﴿فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ﴾ ۔ (الآية) (انتظاره کوه کله

چه آسمان به راتلل اُوکړی په لوګی ښکاره سره)۔

عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : دا علامه د قیامت نۀ ده، او دا د بدر واقعې ته اشاره ده، یا قحط ته اشاره ده لکه بخاری شریف کښې د هغه دا قول نقل شوے دے۔

او حُذیفه رضی الله عنه فرمائی: چه نَهٔ، دا د قیامت علامه ده او مخکښې د قیامت نه به لوګے راځی لکه د رسول الله ﷺ نه ددے لوګی متعلق تپوس اُوشو نو هغوی اُوفرمایل : چه دا به راځی او د مشرق او مغرب په مینځ کښې چه کومه فضاء ده هغه به ډکه کړی او مؤمن به په حالت د زکام کښې شی، او کافران خلق به ددے نه بے هوشه شی»۔ (مرقاة)

او یاجوج ماجوج یو قوم دے د نوح علیه السلام د ځوی یَافِث د اولادو نه دی، لیکن وحشیان ګرزیدلی دی، او ذو القرنین دوی ته د تانبے دیوال جوړ کړیدے، د هغے نه ډیخوا نۀ شی راتلے، مګر قیامت ته نزدے به دغه دیوال ذره ذره شی او یاجوج ماجوج به راوځی۔

د نواس بن سمعان رضی الله عنه په حدیث کښې راځی چه رسول الله ﷺ د دجال تذکره کولو سره اُوفرمایل : «که چرته دجال راغے او زۀ ژوندے وُم، نو زۀ به ورسره مقابله کوم او که زۀ وفات شوے وُم نو الله زما د هر مومن دپاره خلیفه دے»۔ دجال ځوان سړے دے، سرئے ګُنجے ګُنجے دے، او یوه سترګه ئے راوتے ده او د عبد العزی بن قطن سره مشابه دے، (دا هغه وخت یو کافر وو)، نو ستاسو نه چه کوم کس دجال وینی، نو د سورة کهف اولنی آیتونه دِے وُوائی، دا به ستاسو د اره د

پناهئ سبب شي د هغه د فتنې نه، او دجّال به په "خَلّة" مقام کښې راوځي، چه دا یو ځائے دے د شام او د عراق په مابین کښې. نو دا به ګرزي ښي طرف ته او ګس طرف ته یعني تول‌ه دنیا کښې به ګرزي، نو رسول الله ﷺ فرمائي : اے د الله بندګانو ! مضبوط شئ، صحابه کرامو تپوس اُوکړو چه دجال به دنیا کښې څومره وخت تیرَوي نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل چه څلویښت ورځې، لیکن یوه ورځ به د کال په شان وي او دویمه ورځ به د میاشتې په شان وي او دریمه به د یوې جُمعې په شان وي، او باقي ورځې به د عامو ورځو په شان وي، نو صحابه کراموٌ عرض اوکړو، اے د الله رسوله ! هغه ورځ چه د کال په شان وي، نو هغې کښې به مونږ پنځه مونځونه کوو او که زیات ؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «نَهٔ ! هر مانځه له به اندازه لګوئ »، نو بیا صحابه کراموٌ عرض اُوکړو چه دجال به په دنیا کښې څومره په جلتئ ګرزي؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «لکه وریځ چه هوا وړپسے شي، پس دے به راشي یو قوم ته نو هغوي به راوبلي خپل ربوبیت ته نو هغوي به پرے یقین اُوکړي نو دے به آسمان ته د باران حکم اُوکړي، هغه به باران نازل کړي او زمکے تَه به حکم اُوکړي، هغه به ګیاه رازرغونه کړي، نو د دغه قوم چه کومے ګډے بیزے څاروي دي ښه به ماړهٔ شي، او ښه پئ (شوده) به کوي او ښه به څاربه شي، نو دجال به بل قوم ته دعوت ورکړي، هغوي به ترے انکار اُوکړي، کله چه صبا شي نو دوي به په قحط کښې وي، لاس کښې به ورسره د هغوي د مالونونه هیڅ نهٔ وي. بیا به دجال یو شاړے زمکے

تـه حُکم اُوکړی چه خزانے راوُباسه نو تولے خزانے به د هغے نه راوځی، نو بیا بـه یـو ځـوان سړے را وُغواړی او په تُوره به ئے اُووهی، نو دوه توټے به ئے کړی، بیا به ورته آواز اُوکړی نو مخامخ به راشی، مخ به ئے ځـلیـږی او هـغـه مړ شوے سړے به خاندی۔نو دجال به په همدے حال وی چه پدے مینځ کښ به الله تعالیٰ عیسیٰ ؑ راکوز کړی، هغه به د دمشـق پـه مشرقی جانب کښ د سپینے منارے خوا کښ راکوز شی، دوه جامے به ئے اَغوستے وی چه رنګ کړے شوے به وی، او لاسونه به ئے په دوه ملائکو ایخودی وی» ۔

بیا په حدیث کښ داسے دی چه «عیسیٰ ؑ به دجال په باب لُد کـښ ونیسـی او قتـل بـه ئے کړی، نو عیسیٰ ؑ تـه بـه الله وحی اُوکړی چـه زهٔ داسے بندګان راوُباسم چه د چا طاقت د مقابلے ورسره نشتـه، نـو تـهٔ خپـل مومنان ملګری طور غر ته بوځه، نو الله تعالیٰ بـه یـاجوج ماجوج راپرانزی، نو اَولنے جماعت د هغوی به په بحیره طبـریـه تیر شی او د هغے اُوبه به وُڅکی نو روستو جماعت به وائی چـه دلته یو وخت کښ اُوبه وے، او اُوس ختمے شوے دی، تردے چه (اَلْـخَـمَـرُ) نوم ئے یو غر ته به وُرسیږی۔ او دا د بیت المقدس غر دے نـو دوی بـه وُوائـی چـه زمکے والا مونږ مړهٔ کړل، راځئ چه آسمان والا قتـل کـړو، خپـل غشـی به آسمان طرف ته ګُوزار کړی، نو الله پاك به د هغوی غشی په وینو سره راواپس کړی او عـیسیٰ ؑ او د هغـه مـلـګری به هلته په طور کښ بند وی تردے چه دوی ته به د غوئی سر د سلو اَشرفو نه ښه ښکاری، (یعنی لکه تاسو چه څنګه

خپلې پریشانۍ او تکلیفونه په پیسو لرې کوئ نو هغوی به هم دغه رنګ د غوئی سر ته حاجتمند وی) نو عیسیٰ علیه السلام او د هغه ملګری به د الله تعالیٰ نه د یاجوج ماجوج د هلاکت سوال اُوکړی، الله تعالیٰ به د هغوی په څټونو کښې دانې راوُخیژوی نو الله تعالیٰ به دوی ټول په یوه ورځ کښې مړهٔ کړی او ختم به شی نو عیسیٰ علیه السلام به سَره د ملګرو نه د طور غر نه راکوز شی او ټوله ځمکه به د هغوی د بدبوئی او د لاشونو نه ډکه وی چه د یو لیشت قدرې ځائې به خالي پکښې نهٔ وی، نو عیسیٰ علیه السلام به سره د ملګرو نه د الله تعالیٰ نه دُعا وُغواړی چه دا بد بوئی لرې کړه، نو الله تعالیٰ به مارغان راوُلیږی لکه د اُوښانو په شان نو هغوی به دا یاجوج ماجوج یو ځائې ته ګُوزار کړی۔

بل روایت کښې راځی چه په (نَهْبَل) مقام کښې به ئې اُوغورزوی، نو مسلمانان به د هغوی د لیندو او غشو نه او د غاړکونه اُووه (۷) کاله اُور بل کړی، بیا به الله تعالیٰ یوه هَوا راوُلیږی چه یو ځائې بهٔ ترې پاتې نهٔ شي، مګر پاك به ئې کړی، بیا به ځمکې ته حکم اُوکړې شی چه خپل برکات او میوې رازرغونې کړه، نو دغه وخت کښې به یو اَنار باندې یَوه ډله خلق مړیږی، او د یو اَنار پوستکې به دومره لوئی وی چه دوی به ترې لاندې ناست وی، او هغې به پرې سورې کړې وی، او پیو (شودو) کښې به الله برکت واچوی، تردې چه د یوې اُوښې په پیو باندې به ډیر جماعتونه مړیږی، او د یوې غوا په پیو باندې به قبیله مړیږی، او د یوې ګډې په پیُو به یوه وړه قبیله

مرېږي نو دوی به دارنګه وي، دے مينځ کښ به الله تعالیٰ یوه مزیداره هواء راولیږي نو د هر مؤمن او مسلمان روح به لاړ شي او شرار خلق به پاتے شي د یو بل سره به جګړے کوي لکه د خرو په شان۔ (یا یو بل سره به زنا کوي ښکاره لکه د خرو په شان)۔ نو په دوی به قیامت قائمیږي

(رواه مسلم والترمذی کذا فی المشکوة)

الله تعالیٰ نه غواړم چه مونږ ددے زمانے نه اُوساتی۔ آمین۔

دے مخکښ حدیث کښ ذکر د خسفونو راغلے دے چه یو به په مشرق کښ وي او بل به په مغرب کښ وي او بل به په جزيرة العرب کښ وي) او یو روایت کښ بیان شوی دی چه دا خسفونه به په هغه کسانو کښ وي چه هغوی تقدیر نهٔ منی۔

## ۸- د يَمن نه اُور راوتل

حدیث کښ ددے تذکره هم وه چه د یمن نه به اُور راښکاره کیږي او خلق به محشر طرف ته بوځي)۔ مرقاة کښ لیکی چه د قیامت میدان به په شام علاقه کښ وي، او دے باره کښ حدیث هم شته دے۔ او علماؤ لیکلی دی چه کله په زمکه کښ الله، الله وئیلو والا پاتے نهٔ شي نو په ملك د شام کښ به اَمن وي او غَلے به ډيرے وي، او خلق به ټول هغه طرف ته روان شي نو هرکله چه دوی شام ته لاړ شي او هلته آباد شي نو د یمن د جانب نه به یو اُور راښکاره شي او خلق به شام ته راولی، او بیا به دا اُور غائب شي او دوه درے

کاله بعد به قیامت واقع شی، گویا کښې دا د قیامت آخري علامه ده۔

**فائده** : په بعض احادیثو کښې د قیامت اولنو علاماتو کښې اُور خودلے شویدے، په بعضو کښې د نبی ﷺ بعثت او په بعضو کښې د مغرب د طرف نه نمر راختل خودلے شویدی ددے په تطبیق کښې علامه مناوی په فیض القدیر کښې داسے وئیلی دی چه علامات په درے قسمه دی بعض علامات د نزدے والی دی او بعض د ډیر نزدے والی دی او بعض د واقع کیدو دی۔ نو د قیامت د نزدے والی علاماتو کښې اوله علامه د نبی ﷺ بعثت دے او په ډیر نزدے کیدو کښې اوله علامه اُور راوتل دی د مشرق نه چه خلق به مغرب ته جمع کوی، بیا وریسے دخان (لوګے) راتلل دی، بیا دجال دے بیا یأجوج ماجوج دی۔ او د قیامت د واقع کیدو اوله علامه د نمر د مغرب د طرف نه راختل دی چه ددے د راختلو نه روستو به توبه نهٔ قبلیږی، بیا دابة الارض راتلل دی او دے ته ئے چه اول وئیلے دے نو پدے وجه چه ددے قسم ابتداء به د دابة الارض نه کیږی۔

حافظ ابن حجر وئیلی دی چه د مجموعه روایاتو نه دا ثابتیږی چه د عالم ارضی د احوالو د تغییر اوله علامه به دجال وی بیا به عیسی علیه السلام بیا به یأجوج مأجوج وی او دا ټول به د نمر د مغرب نه د راختلو نه مخکښې وی۔ او د عالم علوی (پورته عالم) د احوالو د تغییر اوله علامه به د مغرب د طرف نه نمر راختل وی او په همدغه ورځ به دابة الارض راوځی یا به دے ته نزدے وی۔ او د

قیامت اوله علامه به اُور وی چه د مشرق نه به راوځی۔

فیض القدیر [۱۰۵/۳]

بعض علماؤ وئیلی دی چه پدے باب کښ توقف او تفویض الله ته مناسب دے۔ تحفة الاحوذی [۳٤٦/٦]

## ۹– خلق به سمندر ته غورزولے شی

مخکښ حدیث کښ دا هم راغلل چه هوا به خلق سمندر کښ غورزوی، دا هم د قیامت د علاماتِ کُبرىٰ ؤ نه یوه علامه ده۔ بعض علماؤ وئیلی دی چه دا به هم د عیسی علیه السلام د زمانے نه روستو وی۔

## ۱۰– د دوه خاصو بادشاهانو تذکره

ابو هریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی «قیامت به قائم نهٔ شی تردے چه د قحطان قبیلے (دا قبیله په یمن کښ اوسیدونکے وو) یو بادشاه ظاهر نهٔ شی چه خلق به د خپل اقتدار په وجه په اَمسا شَړی» ۔ (متفق علیه)

مرقاة شرح د مشکوٰة کښ لیکی چه خلق به تول په اِتفاق سره د هغه حکومت تسلیم کړی او د هغه خبره به منی۔

او حافظ ابن حجرؒ د قرطبیؒ په حواله فرمائی چه دا بادشاه به ډیر سخت طبیعت والا وی، او ظالم به وی، نو ځکه به خلق ددهٔ تابع وی لکه شپونکے چه ګډے بیزے په زوره د یو ځائے نه بل ځائے

ته شړی، دارنګه دا بادشاه به هم داسې وی۔

ابو هریره رضی الله عنه فرمائی، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی:

«شپې او ورځې بـه ختمې نهٔ شی تردې چه جهجاه نوم بادشاه به راشی چه د غلامانو د نسل نه به وی، او بادشاهی به کوی».

(رواه مسلم)

بعضِ علماء وائی چه د قحطان قبیلې بادشاه به د عیسیٰ علیه السلام د مرګ نه پس د هغه نائب او خلیفه وی۔ والله اعلم۔

## ۱۱ – یو حبشی به کعبه ورانه کړی

د عبد الله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: «ترڅو چه تاسو سره حبشه جنګ نهٔ کوی نو تاسو ئې هم ورسره مهٔ کوئ ځکه چه د خانه کعبې خزانه به یو حبشی راوباسی چه وَړې ورې پُنډئ به ئې وی»۔

او بل حدیث کښې راځی چه «کعبه شریفه به وړو وړو پُنډو والا حبشی وُرانوی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

وَړو وَړو پُنډو والا ئې ځکه ذکر کړې دې چه د حبشو اکثر دارنګ پُنډئ وی، او د خزانې د کعبې مبارکې نه څه مراد دې؟ یو قول دا دې چه د خانه کعبې نه لاندې خزانه دفن کړې شوې ده، نو هغه ظالم چه کله کعبه وُرانه کړی، هغه خزانه به راوباسی۔ او څوك وائی چه مراد ترې هغه مالونه دی کوم چه خلقو نذر کړی وی، او په کعبه کښې هغه دی یعنی د هغې دپاره چه کومه چنده ده او دا

حبشـی ظالـم به هله پیدا کیږی چه کله د دنیا نه الله، الله وئیلو والا لاړ او ختـم شی، نـو پـه مـخ د زمـکه به د حبشو بادشاهی شی، نو هغـوی بـه د کـعبے د وړانـولـو اراده اُوکړی۔ او دا واقعه به د عیسیٰ ﷺ د وفـات کیـدو نـه پـس وی۔ عـلامـه قـرطبیؒ وائی : د کعبے خـرابـوالے به په هغه وخت وی چه قرآن کریم د سینو او مصحفونو نـه پـورتـه کړے شی او دا کار به د عیسیٰ ﷺ د وفات نه روستو وی او همدا خبره صحیح ده۔

[عمدة القاری : ۱٤/٤٥١]

بیا دلته دا سوال نهٔ راځی چه قرآن کښې راغلی دی چه حرم امن والا دے او دلته وائی چه کعبه به ورانیږی ؟۔

جـواب دا دے چه د کـعبے ورانیـدل پـه آخره زمانه کښې دی او د آیت نه خو دا نهٔ معلومیږی چه دا امن به همیشه دپاره وی او هیڅ کله به ئے امن نهٔ خرابیږی۔

## ۱۲ – قرآن به د سینو نه اُوچت کړے شی

حُـذیفه بن الیمان ﷺ فـرمـائی چه رسول الله ﷺ اِرشاد فرمایلے دے چه اِسـلام به زوړ شی لکه د جامے نقشونه چه څرنګه زړیږی، تـردے چـه خلقو ته به پته نهٔ وی چه روژے څه ته وائی او مونځ څه تـه وائـی او عبادات څه ته وائی او صدقه څه ته وائی او د شپے به الله قـرآن کـریـم پـورتـه کـړی، پـه زمـکـه بـه یـو آیت هم پاتے نهٔ شی او بـو ډاګـان سړی او بو ډئ ښځے به وائی چه مونږ خپل مشران په دے

کلمه موندلی دی (لا اله الا الله)۔نو مونږ به دا کلمه وایُو، نود حذیفهؓ شاګرد صلتؒ تپوس اُوکړو چه دا کلمه به دوی ته څه فائده ورکړی او حال دا دے چه دوی روژه، مونځ وغیره نهٔ پیژنی؟۔ نو حُذیفهؓ ترے مخ واړولو، درے ځله دا تپوس اُوشو او هغه به مخ ترے په هره پیره اَړولو، بیا ئے اُوفرمایل : اے صلت! دوی به د اُور د جهنم نه بَچ کوی۔ دا خبره ئے درے ځله مکرر کړه۔ (رواه ابن ماجه : ۳۰۳)

دے حدیث شریف نه معلومه شوه چه قرآن کریم به الله پورته کوی۔ دے وجه نه قرآن کریم طرف ته زیاته توجه پکار ده، هسے نَه چه هغه وخت راشی او اِنسان د قرآن نه هیڅ زدهٔ کړی نهٔ وی نو په تاوان کښ به واقع شی۔ والله اعلم۔

## ۱۲- زمکه به خپلے خزانے راوُباسی

د ابو هریرهؓ اِرشاد دے فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه «زمکه به خزانے راوُباسی په مثل د ستنو به سرهٔ او سپین پراتهٔ وی، پس غل سرے به راشی او دا به وُوائی چه دے مال باندے ما نه لاس پرے کړے شویدے نو بیا به قاتل راشی او دا به اُووائی چه ددے دپاره ما قتل کړیدے، او بیا به صله رحمی قطع کونکے راشی او دا به اُووائی چه دے دپاره ما صله رحمی پریکړے ده، نو دوی به دے مال ته هیڅ ګوتے هم نهٔ وروړی»

(څه حاجت به ئے ورته نهٔ وی، او یا دا چه قیامت به نزدے وی نو ځکه به ګوتے نهٔ ور وړی)۔ (ترمذی۲/۴۴)

## ۱٤ - زلزلے او غمونه به راځی

عبد الله بن حواله ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ مونږ د غزوے دپاره پیدل لیږلی وو چه غنیمت راوړو نو واپس راغلو او هیڅ غنیمت مو رانهٔ وړو، نو رسول الله ﷺ زمونږ مخونو کښې اثر د مشقت اُولیدو، پاڅیدو او دُعاءئے اُوکړه او وے فرمایل : «اے الله ! دوی ما ته مهٔ سپاره، زهٔ به د دوی د اِمداد نه عاجز او کمزورے شم، او دوی خپلو ځانونو ته هم مهٔ پریده، نو د خپل ځان د امداد نه به عاجز شی، او نورو خلقو ته ئے هم مهٔ سپاره ځکه چه خلق به په دوی ځان غوره کړی»۔

بیا رسول الله ﷺ زما په سر لاس کیخودو، وے فرمایل : اے ابن حواله ! کله چه تا خلافت اُولیدو چه مقدسے زمکے ته اُورسیدو (یعنی بیت المقدس به آخره زمانه کښې فتح شی) نو زلزلے به نزدے شی او غمونه به راشی، او لوئی لوئی کارونه به پیدا شی او قیامت به بیا دومره رانزدے شی لکه زما دا لاس چه ستا سر ته څومره نزدے دے بلکه ددے نه هم زیات»۔

(ابوداود، حاکم فی المستدرك وسنده صحیح کما فی صحیح الجامع (۷۸۳۸) وکنز العمال ص (٥٦٦)

## ۱٥ - تندرونه به زیات شی

ابوسعید خدری ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی:

«تندرونه به زیات شی کله چه قیامت نزدے شی نو هر صبا به خلق وائی چه بیگاه په چا تندر راغورزیدلے دے نو خلق به وائی چه په فلانکی باندے او په فلانکی باندے»۔

(مستدرك٤/٤٤٤)

د ابو هریره ﷺ اِرشاد دے چه «نزدے ده چه تاسو به څه کورونه پیدا نکړئ چه تاسو پټ کړی، ځکه چه کورونه به زلزلے وُران کړی وی، او قریبه ده چه تاسو به څۀ حیوانات د سورلی وُنۀ مومئ چه په هغے سفر اُوکړئ ځکه چه تندرونه به ئے هلاك کړی»۔

(ابونعیم، کنز العمال (١٤/٥٧١)

مطلب دا شو چه زلزلے او تَندرونه د قیامت په علاماتو کښ دی او کله چه دا ډیرے شی نو قیامت به نزدے وی، اُوس هم داسے تندرونه پریوزی چه په مختلفو ملکونو کښ ئے لوئی لوئی کلی ئے تباه کړل او زلزلے هم ډیرے راځی۔

(او نن صبا څو مره بمونه او دهماکے راغورزیږی دے ته فکر اُوکړه، پدے حدیث به ډیر یقین زیات شی)

## ١٦ - اختلاف

ددے اُمت به کیږی درے اوویا (۷۳) ډلو ته۔

د عوف بن مالك ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «زر دے چه زما اُمت به درے اویا (۷۳) ډلے شی»۔

بل روایت کښ دی «لکه یهودیان یو اوویا ډلے شوی وو، او

نصارئ دوه اویا (۷۲) ډلے شوی وو، او زما اُمت به درے اویا (۷۳) ډلے شی، ټول به په اُور کښں وی مگر یوه »۔ صحابه کرامؓ عرض اُوکړو اے د الله رسوله ! دا کومه یوه ډله ده ؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «زۀ چه په کومه لاره او طریقه روان یم او زما صحابهٔ چه په کومه لاره او طریقه روان دی۔ نو څوك چه ددے لارے تابعداری کوی نو هغه به نجات بیامومی»۔

او په روایت د مستدرك کښں ورسره دا هم راغلے دی چه «لویه ډله په دوی کښں په اعتبار د فتنے سره هغه کسان دی چه قیاسونه به کوی په خپله رائے باندے، پس حراموی به حلال او حلالَوی به حرام»۔ (کذا فی المستدرك ٤/٤٣٠)

## ۱۷ – جماتونو کښں به مؤمنان ختم شی :

د عبد الله بن عمروؓ نه روایت دے چه «په خلقو به داسے زمانه راشی چه جماتونوته به راجمع شی او حال دا دے چه یَو به په کښں هم مؤمن نهٔ وی»۔

(مستدرك ٤/٤٤٢) وصححه الذهبی)

یعنی ایمان به ختم شی اگرکه څه جماتونه او ظاهری څه نقشے د دین به باقی وی لیکن مقصودی شے چه کوم دے هغه به ختم شی۔ والله اعلم۔

*******

# قيامت

## ته نزدے د خلقو حال او د قيامت وقوع

د أنس ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :
«قيامت به نهٔ راځي ترڅو چه د زمکے نه الله، الله وئيلو والا ختم نهٔ شي»۔ (يعنى هيڅ مسلمان پاتے نهٔ شي) (مسلمؒ)
شاه انور شاه رحمة الله عليه په شرح د ترمذي کښې چه نوم ئے «عرف شذي» دے فرمائي : دا ځکه چه د دنيا روح «لا اله الا الله» دے، کلمه د توحيد د دُنيا روح دے، او کله چه روح لاړ شي نو بدن بيا ختميږي۔ دارنګه د دُنيا نه چه کله دا کلمه ختمه شي نو بيا به قيامت راځي۔
عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ إِلَّا عَلٰى شِرَارِ الْخَلْقِ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)
(قيامت به نهٔ قائميږي مګر په ناکاره خلقو)۔

## بيا به شرک شروع شي

ابو هريره ﷺ فرمائي : قيامت به نهٔ راځي تردے چه د دَوس قبيلے د زنانو کُناتي د ذي الخلَصه بُت نه چاپيره وُنهٔ خوزيږي، او ذي الخلَصَه يو بُت وو چه مشرکينو به ورله عبادت کولو (او بيا جَرير بن عبد الله البجلي ﷺ د رسول الله ﷺ په حکم مات کړے وو او په اُور ئے سيزلے وو، لکه د بخاري شريف په کتاب المغازي

۲/کښې دا واقعه راځي۔ (متفق علیه)

او اُم المؤمنین عائشه ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ نه ما اَوریدلی دی چه «شپه او ورځ به ختم نهٔ شی (یعنی قیامت به رانهٔ شی) ترډے چه د لَات او عُزّیٰ عبادت به وُشی»۔ (دا دوه بُتان وو یو د نیك سړی بُت وو او یَو وُنه (بوټے) وو چه پیرئ به ترے کله کله رابښکاره کیده، بیا د مکے د فتح نه روستو رسول الله ﷺ ختم کړل، نو عائشےؓ اُوفرمایل : اے د الله رسوله! زما گمان خو دا وو چه تر قیامته به شرك اُونهٔ شی، کله چه دا آیت نازل شو: ﴿ هُوَ الَّذِیٓ اَرۡسَلَ رَسُوۡلَهٗ بِالۡهُدٰی ﴾ (الآیة) (چه حاصل او مفهوم د آیت دا دے چه الله تعالیٰ محمد علیه السلام رالیږلے دے او دین به ورله په ټولو دینونو غالب کوی)

نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «چه آؤ، څه موده پورے به شرك نهٔ وی، بیا به الله یو مزیداره هوا راواُلوزوی چه د هر چا په زړهٔ کښې د اُوری د دانے هُومره ایمان وی، هغه به وفات شی او بے خیره خلق به پاتے شی او د خپل پلارانو دین ته به واپس شی»۔

(رواه مسلم)

حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کښې د طبرانی په حواله روایت نقل کړے دے چه د حدیث معنی دا ده : قیامت به تر هغه وخته نهٔ قائمیږی ترډے چه یوه ښځه به د سړو په یوه ډله ورتیره شی، نو د هغوی نه به یو سړے راپاځی، او د هغے ښځے لَمن به اُوچته کړی، او زنا به ورسره اُوکړی د خلقو په مخکښې، نو په هغوی کښې به یو

سړے وی چه هغه به اُووائی چه لږ شان یو طرف ته خو شه، نو ددے سړی به دومره ډیر اَجر اُوشی لکه د ابوبکرؓ اوعمرؓ په شان۔ (یعنی دے به ډے تولو کښ داسے بزرگ وی لکه په تاسو کښ چه ابوبکرؓ او عمرؓ بزرگان دی)۔

عبد الله بن عمرو ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

«د دجال د خلویښتو کالو یا د میاشتو یا د ورځو نه بعد به الله تعالیٰ عیسیٰ علیه السلام راولیږی، دے به د عُروه بن مسعود په شان وی چه دا د ثقیف قبیلے یو مؤمن او شهید دے۔ نو عیسیٰ علیه السلام به دجال وُوژنی، نو بیا به عیسیٰ علیه السلام اووه کاله په زمکه کښ درنګ تیر کړی چه د دوه کسانو ترمینځ به بالکل عداوت او دُشمنی نۀ وی (یعنی امن وامان به وی) بیا به الله تعالیٰ د شام د طرف نه یوه مزیداره هوا راولیږی۔ پس هر هغه خوك چه په زړۀ کښ ئے د ذرے هُومره ایمان وی نو وفات به شی تردے چه که یو کس ستاسو نه مینځ د غرۀ ته داخل شوے وی نو دا هوا به هلته هم ورپسے وَرشی تردے چه مړ به ئے کړی، نو بیکاره خلق به پاتے شی، د مرغانو په شان به شهواتو ته جلت وی او د درندګانو په شان ظالمان به وی، نۀ به نیکی پیژنی او نۀ به ګناه ته ګناه وائی نو شیطان به ورته په صورت د یو سړی کښ راشی او ورته به اُووائی چه آیا تاسو کښ دومره حیاء نشته ؟ نو هغوی به ورته اُووائی چه تۀ مونږ ته څه حکم کوے ؟ نو شیطان به ورته د بُتانو او د مخلوق په عبادت باندے حکم اُوکړی، او دوی له به الله

ښــهٔ رزق هــم ورکـوی، او ښــهٔ مـزیـدار عیـش بـه ئے وی، نو بیـا بـه شپیـلـئ کـښ پُـوکے اُوکړے شی، هرڅوك ئے چه واوری نو غوږ به کیږدی، او څټ به ورته کوږ کړی۔

رسـول الله ﷺ فـرمایلی دی چه اول به ئے هغه سړے آوری چه د خپلـو اُوښـانـو دپاره به حوض جوړوی نو بے هوشه به شی، او نور خلـق بـه هـم بے هوشه شی، او مړهٔ به شی۔ بیا به الله یو باران نازل کړی لکه د شبنم (پرخے) په شان، نو خلق به د هغے په وجه رازرغون شـی او راژوندی به شی، بیا به دویمه شپیلئ اُوشی نو ټول خلق به د الله جَلَّتْ عَظْمَتُهُ په مخکښ اُودریږی۔

بیـا بـه مـلائـکـو تـه حکم اُوشی چه دوی اُودروئ چه تپوس ترے اُوشی، بیا به ملائکو ته حکم اُوکړے شی چه د جهنم ډله جُدا کړئ نـو هـغـوی بـه وُوائـی چـه اے الله ! څـو مره کسان جُدا کړو نو الله به ورتـه اُووائـی چـه د زرو کسـانو نه نهه سوه نهه نوی (۹۹۹) کسان جهـنـم تـه بوزئ، نو رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه دا هغه ورځ ده چه ماشومان به پکښ بُوډاگان کیږی او دا هغه ورځ ده چه «سَاق» بـه پـه کـښ ښـکاره کیږی، (رواه مسلم) یعنی خبره به ډیره سخته کیږی۔

دے حـدیـث کـښ دا تیر شو چه سړے به د اُوښانو حوض جُوړوی نـو قیـامت بـه پرے راشی) نو مطلب دا شو چه خلق به مشغول وی پـه کـارونو کښ لکه بل روایت کښ راځی چه څوك به کپړه اَخلی، او گز کـوی بـه ئے، چـه قیـامت بـه پرے راشی او څوك به خولے ته

دوډئ پـورتـه کـوی، پـه دے میـنـځ کښ به پرے قیامت قائم شی»۔ (مشـکوٰة)

قرآن کریم کښ هم الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ بَلْ تَـأْتِيْهِـمْ بَـغْتَةً فَتَبْهَتُهُـمْ فَلَا يَسْتَـطِيْـعُوْنَ رَدَّهَـا وَلَاهُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴾۔ (الانبياء)۔

(بـلکه راځی به دوی ته (قیامت) ناڅاپی پس حیران به کړی دوی لـره نـو طـاقت به نۀ لری د هغے د واپس کولو او نه بۀ دوی ته مهلت ورکړے شی)

## د قیامت کبراهت

ابوسعید خدری ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی :

«كَيْفَ اَنْعَمُ وَصَاحِبُ الْقَرْنِ قَدِ الْتَقَمَهٗ وَاَصْغٰی سَمْعَهٗ وَحَنٰی جَبْهَتَهٗ يَنْتَظِرُ مَتٰی يُؤْمَرُ بِالنَّفْخِ» فَـقَالُوْا يَارَسُوْلَ اللهِ وَمَا تَأْمُرُنَا ؟ قَالَ : «قُوْلُوْا ! حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ» [رواه الترمذی]

(زۀ بـه څـنـګـه خوشحالی اُوکړم، او حال دا دے چه اِسرافیل ﷺ شپیلـئ خُله کښ نیولے ده او د الله خبرے او امر ته ئے غوږ ایښے دے او مـخ ئـے هم اَخوا اَړولے دے، انتظار کوی چه کله به ورته د شپیلئ په ږهلو امر کیږی نو صحابه کرامو عرض اُوکړو چه مونږ ته تاسو څـه حـکـم کـوئ ؟ نـو رسـول الله ﷺ اُوفـرمایل : دا کلـمـه وایئ : «حسبنا الله ونعم الوکیل»۔

دا ډیره بهترینه کلمه ده، ابراهیم ﷺ چه کله اُور ته غورزیدو هم دا کـلـمـه ئـے وئیلے وه او نبی ﷺ هم پـه یـوه غـزوه کښ وئیلے وه۔

(بخاریؒ)

قرآن کریم کښ الله تعالیٰ د قیامت ډیر هیبتونه او لوئی والے ذکر کړے دے، لکه په سورة ابراهیم کښ الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ، اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ، ﴾ (الآية)

(په الله دا ګمان مهٔ کوه چه هغه ګنے د ظالمانو د عملونو نه خبر نهٔ دے بلکه خبر دے لیکن الله دوی هغه ورځے ته روستو کوی چه سترګے به پکښ وازے پاتے شی)۔

همدارنګه نور آیتونه ډیر زیات دی، د قرآن تفسیرونه اُوګورئ، یا د کوم اُستاذ نه د قرآن کریم ترجمه زده کړئ۔

حدیث کښ راځی چه رسول الله ﷺ نه چا تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله ! ستا سر سپین شو؟ هغه اُوفرمایل :

((شَيَّبَتْنِيْ هُوْدُ وَاَخَوَاتُهَا))۔

(زهٔ سورة هود او د هغے په شان نورو سورتونو (لکه سورة واقعه، او عم یتساء لون او اذا الشمس کورت لکه د مشکوٰة باب الخوف والبکاء په روایت کښ راغلی دی) بوډا کړم)۔

دے سورتونو رسول الله ﷺ ځکه سپین ږیرے کړے وو چه په دے سورتونو کښ یو امر دے په استقامت او هغه مشکل کار دے، او دویم په دے کښ د قیامت ډیر سخت احوال ذکر شوی دی، دے وجه نه حدیث کښ راځی : که یو انسان دا غواړی چه زهٔ ډے قیامت په دنیا کښ په سترګو اُووینم نو دا سورتونه ډے اُووائی: اِذَا

الشَّمْسُ كُوِّرَتْ، اِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ، وَاِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ" (كذا في المشكوٰة)

دا علامے چه کومے بیان شوے، ددے نه زیاتے نورے په احادیثو کښ راغلی دی او شته، که څوك زیادت طلب کوی نو علم الحدیث ته دِے رجوع اُوکړی، او دا علامات رسول الله ﷺ د ځان نه نهٔ دی فرمائیلی بلکه الله تعالی ورله خبر ورکړیدے، ځکه چه نبی ﷺ د ځان نه خبرے نهٔ کوی لکه د قرآن کریم په سورة النجم کښ راغلی دی : ﴿ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْیٌ يُوْحٰى﴾ (پیغمبر د ځان نه خبرے نهٔ کوی)۔

OOOOOOO

## د قیامت د ورځے حالات

قیامت ته نزدے چه کله د الله والا خلق پاتے نشی او صرف شریان خلق پاتے شی، نبی ﷺ فرمائی : [ فِيْ خِفَّةِ الطَّيْرِ وَاَحْلَامِ السِّبَاعِ] (مسلم) داسے خلق به وی چه شر او ګناهونو او فتنو ته به داسے په منډه ورځی لکه د مارغانو په شان او عقلونه به ئے داسے وی لکه د درنده ګانو په شان نو بیا به الله تعالیٰ دا نظام بدلوی او ددے نظام بدلولو دپاره الله تعالیٰ د اسرافیل ﷺ شپیلۍ مقرر کړیده چه د هغه شپیلۍ حقیقت الله تعالیٰ ته معلوم دے، چه دا به په کوم کیفیت وی۔ البته دا ډیره غټه ده، د بعض آثارو نه معلومیږی چه

دے شپیلئ کښې به د بندګانو روحونه وی کله چه دویمه شپیلئ اُووهلے شی نو دا روحونه به خپلو خپلو بدنونو ته اُورسیږی او بیرته به راژوندی شی۔

نبی ﷺ فرمائی : زه به د دنیا نه څنګه مزے واخلم او حال دا چه صاحب د شپیلئ (یعنی اسرافیل ﷺ) شپیلئ په خوله کښې نیولے ده او تندے ئے راکوږ کړیدے او غوږ ئے الله ته ایخوستے دے او پدے انتظار دے چه کله به ورته حکم کیږی چه شپیلئ اُووهی لکه دا حدیث مخکښې تیر شو۔

نو دۀ ته به امر اُوشی چه شپیلئ اُووهه نو هغه به اوله شپیلئ اُووهی، په اولے شپیلئ سره به ټول روحونو والا سره د ملائکو نه مړۀ شی دا دومره زوروره ده، البته آسمان او زمکے پدے سره نۀ بدلیږی۔ لکه الله تعالیٰ فرمایلی دی :

﴿ وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ ﴾ [الزمر ٦٨]

(او پوکے به اُوشی په شپیلئ کښې نو آسمان او زمکه کښې چه څه مخلوق دے دا ټول به بے هوشه شی مګر هغه څوك چه الله ئے غواړی، بیا به دوباره پوکے اُوشی نو ناڅاپه دوی ولاړ وی چه ګوری به) د آسمان او زمکے او کائناتو بدلیدو ته۔

د (الا من شاء الله) نه مراد یا خپله اسرافیل ﷺ دے یا ارواح د انسانانو دی۔

او حدیث نه ددے طرز داسے معلومیږی چه کله اوله کښې

انسانان د شپیلئ آواز واوری نو خپل غوږونه به مائل کړی چه دا څه چل اُوشو څکه چه پدے کښ به اوله کښ خوږوالے وی او چه کله هغه ورله زور ورکړی نو پدے سره به سختوالے پیدا شی نو انسانان به ورته نشی تینګیدے نو بس ټول به وفات شی۔ حدیث کښ دی اول بـه ئے هغه سړے آوری چه د خپلو اُوښانو حوض به اخیروی۔ (مسلم)

دا بـه پرلـه پسے اُوږده شپیلئ وی نو پدے وجه به ټول ذی روح ځیزونه مړهٔ کړی۔ ټول به په مخ د زمکه پراته وی۔

عزرائیل ؑ بـه اُووائی اے الله یـو زه پاتے یم او یو ته نو الله به هغه ته حکم اُوکړی چه ته هم مړ شه نو هغه به د الله په امر مړ شی۔

نو په مخ د زمکه او کائناتو کښ به هیڅوك ژوندے نهٔ وی نو الله بـه اُوفـرمائی : نن بادشاهی د چا ده، څه شو بادشاهان د زمکے ؟! نو پـدے حالت به دا بندګان او حیوانات څلویښتو کالو پورے پراته وی بیـا بـه الله امر اُوکړی هغه به باران اُوکړی حدیث کښ دی : داسے به وی [کَمَنِيِّ الرِّجَالِ] لـکه د سړو د منی په شان۔ دا باران به څلویښت ورځے اُوشـی نـو پدے سره به د بندګانو بدنونه راوټوکیږی، ددے نه روستـو بـه الله تـعالـیٰ د ټولو نه مخکښ اسرافیل راپورته کړی او شپیـلئ به ورله ورکړی نو هغه به دوباره شپیلئ اُووهه، پدے سره بـه الله تـعالیٰ ټول انسـانـان سړی وی او که زنانه او ټول حیوانات راپـورتـه کـړی، کـوم انسـان چه په کوم حالت کښ مړ وی په همغه حالت کښ به راپورته شی او چه څه شے ورسره وی، په همغه حالت

کښې به راروان وی که په غلا زنا او ګناه کښې مړه وی نو دغه شان به راځی۔ او سمدست به راپورته شی نو شپیلۍ لا شروع ده چه الله تعالیٰ به اُوس پدے شپیلۍ کائنات بدلوی۔ لکه د قرآن کریم نه همداسے ترتیب معلوم دے چه حشر به اول کیږی او بیا به آسمان او زمکه بدلیږی۔ لکه آیت کښې دی:

﴿ وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْأَرْضَ بَارِزَةً وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا ﴾ [الکهف/]

(او په هغه ورځ چه مونږ به روان کړو غرونه او ته به وینے زمکه صفا میدان او مونږ به دا مخلوق راجمع کړو چه هیڅ یو تن به د دوی نه پرے نږدو)۔

الله انسانان او پیریان مخکښې راجمع کوی بیا روستو آسمان او زمکه بدلوی ددے یو حکمت دا کیدے شی چه که الله تعالیٰ په شپیلۍ سره آسمان او زمکه بدل کړی او انسانان مړهٔ وی نو بیا خو په دوی کښې په مجرمانو هیڅ هیبت رانغلو۔ نو الله تعالیٰ پرے د قیامت اهوال او مصیبتونه ګوری، چه زمکه به د غرونو سره جنګیږی او زلزلے به پرے راځی، آسمان به په زمکه راپریوزی او غرونه به داسے روانیږی لکه د وریځے په شان، او ذره ذره کیږی به او ملائك او رب به راشی او جهنم به راوستلے شی او ملائکو به صفونه جوړ کړی، دا د پریشانۍ احوال دی۔

لکه د سورة حج په آیت: ﴿ إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ﴾ چه د قیامت زلزله ډیره سخته ده، چه هره تے ورکونکے ښځه به د خپل

بچی نه غافله شی او هره حامله به خپل حمل گوزار کړی د سخت هیبت د وجه نه او ټول خلق به نشه وی او حال دا چه څه نشه به ئے نۀ وی کړی۔ دا ډیر سخت حالت دے، ټول ایمان والا ددے ورځے دپاره لګیا دی خواریانے کوی۔ که انسان سره د الله مدد اُونه شی نو انسان خو به غرق شی۔ په دنیا کښې اُوګوره چه لږه زلزله راشی نو د بندګانو څه حال وی؟ رنګ ئے زیړ وی او منډے وهی او بیا چه کله زمکه راخکلے کیږی او غرونه ذره ذره کیږی او هواګانے او طوفانونه راوالوزی چه انسان پورته کوی او لرے لرے ئے ګوزاری نو په دغه وخت کښې به هیڅوك د قیامت تکذیب نۀ کوی۔ هر سړی ته به یقین راشی چه قیامت حق دے۔

د قیامت دومره ګبراهټ دے چه انسان ئے تصور نشی کولے۔ لکه قرآن وائی : ﴿ وَمَا اَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ثُمَّ مَا اَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ﴾ [الانفطار] او ﴿ اَلْحَاقَّةُ مَا الْحَاقَّةُ ﴾ ددے مطلب دا وی چه که تا ته د قیامت احوال او هیبتونه زه بیان کړم نو هم ستا ذهن کښې هغه نشی راتلے، دومره ډیر او سخت دی۔

نو هرکله چه الله تعالیٰ نظام بدل کړو نو د زمکے نه به هموار میدان جوړ کړی او میدان د حشر به ورله تیار کړی او بعض انسانان به د قیامت په ورځ ړاندۀ پورته کړی نو دا به وائی : اے الله تا زه ولے ړوند راپورته کړم او حال دا چه زه خو په دنیا کښې لیدونکے وم؟ الله تعالیٰ به ورته اُوفرمائی : تا ته په دنیا کښې زما آیتونه (قرآن) راغلے وو او تا هغه هیر کړے وو نو ته به هم نن ورځ دغسے

هیرولے شي۔

او دا هغه ورځ ده چه الله تعالیٰ به انسانان بربنډ خپے اِبله، ناسنته راپورته کړی چه ګرمی به هم وی، نمر به یو نیزه رانزدے شوے وی او ګنړه او رش به هم وی او لوږه او تنده به هم ملګرے وی او د الله هیبت به وی او د انسانانو چغے او واویلا او هلاکتونه به وی، پدے ورځ به نهٔ د چا مور وی او نهٔ پلار وی او نهٔ یار او مددګار وی چه مدد ورسره اُوکړی او د الله د عذاب نه ئے خلاص کړی۔ او دا هغه ورځ ده چه مؤمنانو ته به الله تعالیٰ د ملائکو په ذریعه زیرے ورکوی ﴿ اَنْ لَا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِیْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴾ (مهٔ یریږئ او مهٔ غمجن کیږئ او خوشحاله شئ په هغه جنت چه تاسو سره به ئے (په دنیا کښ) وعده کیده)۔

یو روایت کښ دی چه ملائك به مؤمن بنده ته داسے وائی چه دا عذاب چه کوم ته وینے، دا ستا دپاره نهٔ دے، دا الله خپلو مجرمانو له تیار کړیدے۔

دا هغه ورځ ده چه یوم الیم او یوم عظیم ده لکه څنګه چه د ایمان والو دپاره د راحت ورځ ده۔

پدے ورځ به میزان اُولګی چه د انسانانو عملونه به تللے کیږی او د هغوی سره به حسابونه کیږی۔

او پدے ورځ به صراطِ اُولګی چه دا د جهنم په شا باندے یو پُل دے چه جنت ته به بله لاره نهٔ وی سویٰ ددے لارے نه نو انسانان به پدے ورتیږی، څوك به اخوا واوړی او څوك به خکته وریږوزی، دا

تهول انسانان به جهنم ته داخلیږی لیکن بیا به ایمان او نیك اعمالو والا بچ تیریږی۔ بعض کسان به د بریخنا په شان تیریږی او بعض به د اجاوید الخیل په شان وی لکه (کرۀ اسونه) چه تیزه منډه وهی۔ بعض به په کناتو تولیږی او روان به وی او بعض کسان به په کونډو کښ راګیریدو سره تیریږی چه زخمی زخمی به روان وی او بعض به اُلټه جهنم ته ګوزار کړے شی (والعیاذ بالله)۔

په حدیث د مسلم کښ دی چه صراط د ویښته په شان نرے دے او یو حدیث کښ دی چه د چړے په شان تیرۀ دے۔

په قیامت کښ به عملنامے تقسیمیږی چا له به په ښی لاس او چا له به په ګس لاس ورکولے شی۔

دغه شان په قیامت کښ به حوض کوثر اُولګی چه د هغے نه به مؤمنانو ته اُوبه ورکولے شی۔او څوك به محروموله شی چه د هغے تفصیلات د احادیثو په کتابونو کښ راغلی دی۔

الله نه غواړو چه مونږ د دغه ورځے د شدائد او تکلیفونو نه په خپل رحمت او فضل او کرم سره بچ اُوساتی او په هغه بندګانو کښ مو داخل کړی چه هغوی به د عرش د سوری لاندے ولاړ وی۔ آمین۔

فَاِنْ کُنْتَ لَا تَدْرِیْ فَتِلْكَ مُصِیْبَۃ وَاِنْ کُنْتَ تَدْرِیْ فَالْمُصِیْبَۃُ اَعْظَمُ

وَآخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰہِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ وَصَلَّی اللّٰہُ تَعَالٰی عَلٰی خَیْرِ خَلْقِہٖ مُحَمَّدٍ وَّآلِہٖ وَصَحْبِہٖ اَجْمَعِیْنَ ؀

قَدْ تَمَّتِ الرِّسَالَۃُ بِعَوْنِ اللّٰہِ تَعَالٰی وَحُسْنِ تَوْفِیْقِہٖ۔

بسم الله الرحمن الرحیم

## د کتاب دریمه حصه :

## د مهدی، عیسیٰ او دجال تفصیلی حالات او تبصره۔

### ۱ – د امام مَهْدِیْ رحمة الله علیه راښکاره کیدل :

مهدی په عربی ژبه کښ هغه شخص ته وئیلے شی چه هغه ته هدایت شوے وو (نیك انسان وی) او د مسلمانانو مهدی به هم دغه شان وی چه الله تعالیٰ به ئے اصلاح کړی وی او هدایت به ورته شوے وی او د هغه په وجه الله تعالیٰ دین ته ترقی ورکوی۔

### د مهدی نوم او نسب :

سیده ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه فرمایل ئے : المهدی من عترتی من ولد فاطمة مهدی زما د خاندان نه او (زما د لور) دفاطمے (رضی الله عنها) د اولادو نه به وی۔

په یو بل حدیث کښ داسے دی : لَوْ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا يَوْمٌ لَطَوَّلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ الْيَوْمَ حَتّٰى يُبْعَثَ فِيْهِ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ بَيْتِيْ يُوَاطِئُ اسْمُهٗ اسْمِيْ وَاسْمُ اَبِيْهِ اسْمَ اَبِيْ يَمْلَأُ الْاَرْضَ قِسْطاً وَعَدْلاً كَمَا مُلِئَتْ ظُلْماً وَجَوْراً) (ابوداود،

والصحیحة: ۱۰۲۱۳-۱۰۲۳۰)
.که د دنیا نه صرف یوه ورځ باقي پاتے شي (نو هم) الله تعالیٰ به هغه ورځ دومره اُوږده کړي چه زما د خاندان (کورنۍ) نه به یو شخص پیدا کړي چه هغه نوم به زما د نوم او د هغه د پلار نوم به زما د پلار د نوم برابر وي، زمکه به د عدل او انصاف نه ډکوي لکه څنګه چه د ظلم او زیاتي نه ډکه ده۔
د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي : «لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتّٰى يَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِيْ يُوَاطِئُ اسْمُهٗ اسْمِيْ» (ترمذی، ابوداود)۔
(دنیا به نهٔ ختمیږي تردے چه رابه شي یو سړے چه په عربو به بادشاهي کوي، (او د هغوی چه څوك تابعدار دي)، او دا سړے به زما د اهلِ بیتونه وي، او نوم به ئے زما د نوم سره مطابق وي)۔
ددے حدیثونو نه د مهدی نسب داسے معلومیږي چه ددهٔ نوم به محمد وي او د پلار نوم به ئے عبد الله وي۔ او دا به د فاطمے د اولادو نه وي او پداسے زمانه کښې به پیدا کیږي چه توله دنیا د ظلم او زیاتي نه ډکه شوي وي او دا به د عربو مالك جوړیږي یعنی الله تعالیٰ به ورته د جهادونو په برکت بادشاهي ورکوي۔

## د مهدی شکل او صفات:

بل حدیث کښې راځي : «اَلْمَهْدِيُّ مِنِّيْ أَجْلَى الْجَبْهَةِ أَقْنَى الْأَنْفِ يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطاً وَعَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِيْنَ» صحیح سنن ابی داود (٤٢٨٥) صحیح الجامع الصغیر (٦٧٣٦)

«مهدی زما د تابعدارو نه دے، رونړ تندی والا به وی او اُوچتے پوزے والا به وی، زمکه به د انصاف او د عدل نه داسے ډکه وی لکه څنګه چه د ظلم او بے انصافئ نه ډکه شوی ده، اُووه (۷) کاله بادشاهی به کوی»۔

بل روایت کښ دی: «چه ډیر سخی به وی، تردے چه سړی له به دومره مال ورکوی څومره چه دے په خپله جامه کښ وړے شی»۔

«اَلْمَهْدِیُّ مِنَّا اَهْلِ الْبَیْتِ یُصْلِحُهُ اللّٰهُ فِیْ لَیْلَةٍ»

[حسن: صحیح ابن ماجه (۳۳۰۰) الصحیحة: ۲۳۷۱]

(مهدی زمونږ د اهل بیتو نه دے، الله تعالیٰ به ئے په یوه شپه کښ اصلاح اُوکړی)۔

**تبصره**: ددے حدیث نه دا معلومیږی چه مهدی به په ابتداء کښ د عامو انسانانو په شان عام انسان وی، ددے وجه نه به ډیر خلق ترے د مخکنو اعمالو د وجه نه انکار کوی او دا به د هغوی دپاره امتحان وی لیکن الله تعالیٰ به ورته په یوه شپه کښ داسے کمالات او صلاحیت ورکړی او تقویٰ به پکښ واچوی چه هغه به د امت په تربیت، د حکومت په چلولو او د جهادی امورو په تکنیکونو ډیر ښه پوهیږی او دا د الله ورکړه او زمونږ د رسول الله ﷺ پیشینګوئی ده چه همداسے به یقینی واقع کیږی۔ او پدے کښ زمونږ ددے روستو زمانے د مؤمنانو زیرے او خوشحالی ده چه الله تعالیٰ به پس د مجاهدے کولو نه په مسلمانانو یو اسلامی حکومت په ایمان والو راولی۔

رسول الله ﷺ دۀ ته رجل صالح (نیك سړے) وئیلے دے۔

علماء فرمائی: ددے حدیث نه دا هم معلومیږی چه مهدی به اول نه ځان نۀ پیژنی چه زه مهدی یم بلکه یو عام انسان به وی ددے وجه نه به هغه اول انکار کوی چه ما سره بیعت مۀ کوئ او زه ددے قابل نۀ یم لیکن خلق به ورسره د ډیر زور کولو نه پس بیعت اُوکړی نو بیا به پکښ الله تعالیٰ په یوه شپه کښ صفات او صلاحیتونه او قابلیتونه پیدا کړی چه د مظلوم مسلمانانو دپاره به یو عظیم طاقت اُوګرځی۔

په یو حدیث د ابوسعید خدری رضی الله عنه کښ دی: فرمائی چه مونږ اُویریدو چه زمونږ د نبی ﷺ نه روستو څه فتنے او فسادونه پیدا شی نو مونږ د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو نو هغه اُوفرمایل: زما په امت کښ به مهدی راوځی چه پنځه یا اُووه یا نهه (د زید راوی شك دے) ژوند به تیروی، نو مونږ تپوس اُوکړو چه ددے نه څه مراد دے؟ وے فرمائیل: کلونه۔ بیا نبی ﷺ اُوفرمایل: یو سړی به هغه ته راشی ورته به اُووائی: یَا مَهْدِیُّ، اَعْطِنِیْ، اَعْطِنِیْ۔ (اے مهدی! ما ته څه راکړه؟) ۔ نبی ﷺ فرمائی: «فَيَحْثِیْ لَهٗ فِیْ ثَوْبِهٖ مَا اسْتَطَاعَ اَنْ یَّحْمِلَهٗ فِیْ ثَوْبِهٖ»۔ دومره لپے مالونه به ورکړی چه څومره په خپله جامه کښ پورته کولے شی۔

صحیح سنن الترمذی (۱۸۰٦) حدیث حسن)

په یو بل روایت د ابوسعید خدری کښ دی: نبی ﷺ فرمائی: زما په امت کښ به مهدی پیدا کیږی که لنډ عمر تیر کړی نو

پنځه کاله به وی او که زیات وی نو نهه کاله به وی، پدې وخت کښې به زما امت د نعمتونو نه داسې مزې واخلی چه هیڅ کله به ددې په شان نعمتونه ورته نهٔ وی ملاؤ شوی، دوی ته به هر قسم میوه جات (خوراکونه) ورکولې شی او هیڅ شے به د هغوی نه نهٔ ذخیره کوی (نهٔ به ئې ساتی) او مالونه به په هغه وخت کښې د ډیرکو په شان وی (چه په خرچه کولو به نهٔ کمیږی) نو یوتن به راپاڅیږی اُویه وائی : اے مهدی ! ما ته څه راکړه نو مهدی به ورته اُووائی : واخله (څو مره چه غواړې)۔

[حسن : صحیح ابن ماجه [۳۲۹۹]

په حدیث د علی کښې دی : ((یَکُوْنُ فِیْ آخِرِ اُمَّتِیْ خَلِیْفَةٌ یَحْثِی الْمَالَ حَثْیًا لَا یَعُدُّهٗ عَدَداً ) مسلم :۲۸۸۳)

(زما د امت په آخر کښې به یو خلیفه راپیدا کیږی چه خلقو ته به مال په لپو لپو ورکوی او نهٔ به ئې شماری)۔

پس مهدیؔ یو حقیقت لری، څوك چه ترې انکار کوی نو هغه د سنتِ رسول نه منکر دے، لکه دے وخت کښې بعضِ ظالمان شته، چه هغوی د مهدیؔ نه انکار کوی۔ استغفر الله۔

## د امام مهدی بیعت :

سیده ام سلمه رضی الله عنها د نبی اکرم ﷺ بی بی فرمائی : چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((یَکُوْنُ اخْتِلَافٌ عِنْدَ مَوْتِ خَلِیْفَةٍ فَیَخْرُجُ رَجُلٌ مِنْ قُرَیْشٍ مِنْ اَهْلِ الْمَدِیْنَةِ اَلٰی مَکَّةَ یَاْتِیْهِ النَّاسُ مِنْ اَهْلِ مَکَّةَ فَیُخْرِجُوْنَهٗ

وَهُوَ كَارِهٌ فَيُبَايِعُهُمْ بَيْنَ الْمَقَامِ وَالرُّكْنِ فَبَعِثَ إِلَيْهِ جَيْشٌ مِنَ الشَّامِ فَإِذَا كَانُوا بِالْبَيْدَاءِ خُسِفَ بِهِمْ فَإِذَا بَلَغَ النَّاسَ ذٰلِكَ آتَاهُ أَبْدَالُ أَهْلِ الشَّامِ وَعَصَائِبُ مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ فَيُبَايِعُونَهُ))

[مسند ابی یعلی بتحقیق ارشاد الحق رجاله ثقات : ٦/ ٢٦٠ رقم : ٦٩٠٤)
اسناده من طریق مجاهد حسن : قاله حسین سلیم اسد وضعفه الالبانی].

(د یو خلیفه د مرګ په وخت کښ به د خلقو اختلاف پیدا شی نو د قریشو نه به یو سړے د مدینے والو نه راوځی او مکے ته به لاړ شی نو د مکے والو نه به څه خلق د هغه خوا ته راشی نو هغه به راباسی او هغه به (مشری) بده ګنړه نو دا خلق به د هغه سره د مقام ابراهیم او حجر اسود ترمینځ بیعت اُوکړی نو د دوی د مقابلے دپاره به د شام نه یو لښکر راشی نو کله چه بیداء ته راورسی نو په زمکه به داخل شی نو کله چه دا خبره خلقو ته اُورسی نو هغه ته به د شام نیکان خلق او د عراق والو نه څه ډلے به راشی او بیعت به ورسره اُوکړی)

**تبصره** : یعنی یو بادشاه به وفات شی نو اهل حل وعقد کښ به اختلاف پیدا شی چه څوك خلیفه جوړ کړی نو په دے کښ به مهدی چه د مدینے والو نه دے، راوتلے وی او بعض خلقو ته به د هغے علم وی چه دا نیك سړے دے نو دا به مکے ته تلے وی، د مکے والا خلق به ددهٔ ته راغونډ شی۔ او ددهٔ سره به د مقام ابراهیم او حجر اسود ترمینځ بیعت اُوکړی او دا به دا بده ګنړی چه ما خلیفه کړی۔

لکه د یو ضعیف روایت نه داسے معلومیږی چه مهدی به د هغوی نه درے ځل پټ شی او مدینے ته به لاړ شی، دا خلق به ورپسے مدینے ته ورشی هغه به بیا مکے ته راشی درے ځل به دا کار اُوشی خلق به ئے د مقام ابراهیم او حجر اسود ترمینځ مجبور کړی او دا به ورته اُووائی چه ددے امت تربیت اُوکړه، ته مهدی ئے نو دا به ترے انکار کوی آخر دا چه مجبوراً به د هغوئ نه بیعت واخلی او دا به درے سوه دیارلس کسان وی په شمار د بدریانو صحابه کرامو۔ نو خلق به ورسره په جهاد بیعت اُوکړی نو پدے کښ به د شام والا خلق خبر شی او د مهدی د مقابلے دپاره به راروان شی نو کله چه د ذو الحلیفے خوا ته میدان (بیداء) ته راورسی نو الله تعالیٰ به ئے په زمکه ننباسی بیا به خلقو کښ دا خبر خور شی تردے چه د شام او عراق نه به پرے خلق رامات شی او بیعتونه به ورسره شروع کړی۔

په یو صحیح حدیث کښ داسے راغلی دی، عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ یوه ورځ په خوب کښ لاسونه خوزول، مونږ اُووئیل : یا رسول الله ﷺ نن تاسو خوب کښ داسے کار اُوکړو چه مخکښ مو کله نهٔ وو کړے ؟ نو هغه اُوفرمایل :

[اَلْعَجَبُ، اِنَّ نَاسًا مِنْ اُمَّتِیْ یَؤُمُّوْنَ الْبَیْتَ لِرَجُلٍ مِنْ قُرَیْشٍ قَدْ لَجَأَ بِالْبَیْتِ حَتّٰی اِذَا کَانُوْا بِالْبَیْدَاءِ خُسِفَ بِهِمْ] [مسلم ٤/٢٨٨٤]

یعنی تعجب دے ! څه خلق به زما د امت نه د قریشو د یو سړی دپاره د بیت الله قصد اُوکړی چه هغه به ترے په بیت الله کښ پناهی اخستی وی خو کله چه دا خلق بیداء (میدان) ته راورسی نو په

زمکه به داخل شي)۔

په روایت د مسند احمد (۲۵۹/٦) کښې دي : یوه ډله به زما د امت نه په زمکه داخل شي چه دوی به د یو سړي پسې رالیږلے شي، هغه به ترے مکے ته راشي نو الله تعالیٰ به هغه لره د هغوی نه محفوظ کړي او هغوی به په زمکه داخل کړے شي [مَصْرَعُهُمْ وَاحِدٌ وَمَصَادِرُهُمْ شَتّٰى] چه ځائے د هلاکت به ئے یو وي او ځایونه د واپسۍ به ئے جدا جدا وي، ځکه چه دوی کښې به بعض بد ګنړونکي وي نو په حالت د اکراه کښې به راځي۔ الصحیحة (٥٥٧/٤)ح۱۹۲٤]

**مطلب** دا چه کله مهدي سره بیعت اُوشي نو ډیر خلق به د مهدي د مقابلے دپاره فوجونه تیار کړي او د هغه د مقابلے دپاره به راروان شي چه اول به په هغوی کښې د شام والو نه وي نو کله چه ذو الحلیفے ته راورسي نو پدے کښې به په زمکه ورداخل کړے شي، دے خلقو به ځان سره په زوره ډیر مسلمانان هم راروان کړي وي چه راځئ د دغه شخص (مهدي) مقابله کوو، ډیر لاروي به هم ورسره وي لیکن کله چه عمومي عذاب راشي نو په هغے کښې نیکان خلق هم به ورسره په زمکه داخل شي لیکن د هغوی نیت ورسره نهٔ وو شامل نو هغوی به د خپلو اعمالو او نیتونو مطابق جدا جدا بدلوته واپس شي، که دچا بده ازاده وه نو هغوی دنیا کښې هم هلاك او آخرت ئے هم تباه شو او که څوك مجبوراً راروان شوے وي نو هغه به د دغه کسانو سره په دنیا کښې شریك په زمکه ننوزي

لیکن په آخرت کښې به ئې ځایونونه جدا جدا وی۔

او په روایت د نسائی کښې ورسره داسې دی : چه د ایمان والو دپاره به دغه زمکه قبرونه شی او په اُخروی عذاب کښې به ورسره نهٔ وی شامل۔

او بعض علماؤ د بخاری دا حدیث د عائشې چه : [يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ ثُمَّ يُبْعَثُونَ عَلٰى نِيَّاتِهِمْ] (یعنی څه کسان به د کعبې د مقابلې دپاره راشی نو الله تعالیٰ به ئې ټول په ټوله په زمکه ننباسی، عائشې تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله ! په دوی کښې به عام خلق هم شامل وی ؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : په زمکه به ټول داخلیږی لیکن بیا به په خپلو نیتونو راپورته کولې شی۔ بعض علماء فرمائی : چه دا حدیث هم په باره د مهدی کښې دے۔ او دغه مخکنی حدیثونه ددې حدیث تشریح ده۔

او دغه شان د حفصه رضی الله عنها نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «سَيَعُوذُ بِهٰذَا الْبَيْتِ يَعْنِي الْكَعْبَةَ قَوْمٌ لَيْسَتْ لَهُمْ مَنَعَةٌ وَلَا عَدَدٌ وَلَا عُدَّةٌ يُبْعَثُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ حَتّٰى إِذَا كَانُوا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ خُسِفَ بِهِمْ »

[مسلم كتاب الفتن : ۲۸۸۳]

«پدې کور یعنی خانه کعبه کښې به څه خلق پناه واخلی، چه د هغوی سره به د دشمن د حملې دفع کولو هیڅ طاقت نهٔ وی، نهٔ به د هغوی څه تعداد زیات وی او نهٔ به ورسره څه اسلحه وی۔ یو لښکر به (د دوی د ختمولو دپاره) راولیږلې شی، هغوی چه بیداء مقام ته راورسی نو په زمکه به داخل کړے شی»۔

په يو بل حديث د حفصه كښې داسې دي :
[لَيَؤُمَّنَّ بِهٰذَا الْبَيْتِ جَيْشٌ يَغْزُوْنَهٗ حَتّٰى إِذَا كَانُوْا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْاَرْضِ يُخْسَفُ بِأَوْسَطِهِمْ وَيُنَادِيْ اَوَّلُهُمْ آخِرَهُمْ ثُمَّ يُخْسَفُ بِهِمْ فَلَا يَبْقٰى إِلَّا الشَّرِيْدُ الَّذِيْ يُخْبِرُ عَنْهُمْ] [مسلم كتاب الفتن ۲۸۸۳]

(يو لښكر به په بيت الله باندې د حملې كولو په اراده بيداء مقام ته راورسيږي نو رومبې به ددې لښكر مينځنۍ حصه په زمكه كښې داخله شي نو مخكنۍ حصه به روستنۍ حصې ته آواز اُوكړي ليكن تول په توله به په زمكه كښې ننوزي سوا د يو قاصد نه چه (واپس به راشي او) خلقو ته به خبر وركړي۔

بعض علماؤ دا په فتنه د ابن الزبير باندې حمل كړيدې ليكن صحيح دا ده چه دا حالت لا نۀ دې واقع شوې او دا به په زمانه د مهدي كښې چه ډير نزدې دور دې واقع كيږي، و حالات به الله تعالىٰ ډير زر زر بدلوي۔

## د امام مهدي امامت

جابر بن عبد الله فرمائي چه ما د نبي اكرم ﷺ نه اَوريدلي دي چه فرمائيل ئې : [لَاتَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ اُمَّتِيْ يُقَاتِلُوْنَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِيْنَ إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ قَالَ : فَيَنْزِلُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُ اَمِيْرُهُمْ تَعَالَ ! صَلِّ لَنَا، فَيَقُوْلُ: لَا، إِنَّ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ اُمَرَاءُ تَكْرِمَةَ اللّٰهِ هٰذِهِ الْاُمَّةَ] [مسلم، كتاب الفتن، ۲۹۱٤/٦٩]

(هميشه به وي زما د امت نه يوه ډله چه په حق باندې به

جنګیږی او هغه ډله به تر قیامته پورې په حق باندې غالبه وی، کله چه عیسی ابن مریم علیه السلام (د آسمان نه) راکوز شی نو د مسلمانانو امیر (امام مهدی) به عیسیٰ علیه السلام ته عرض اُوکړی چه تاسو راشئ او مونږ ته مونځ اُوکړئ، نو هغه به اُووائی چه نهٔ، تاسو خپل مینځ کښې د یو بل امیران یئ، دا ددې امت دپاره د الله تعالیٰ د طرف نه ورکړې شوې اکرام او عزاز دې)۔

په یو بل روایت د ابو هریره رضی الله عنه کښې دی : رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل : [ كَيْفَ اَنْتُمْ اِذَا نَزَلَ ابْنُ مَرْيَمَ فِيْكُمْ وَاِمَامُكُمْ مِنْكُمْ ؟] [مسلم كتاب الايمان ۱۵۵]

(ستاسو به څه حال وی په هغه وخت کښې کله چه عیسی ابن مریم علیه السلام په تاسو کښې (د سحر مانځه په وخت) موجود شی او ستاسو امام ستاسو نه وی)۔

**تبصره** : د اول حدیث نه دا ثابتیږی چه الله تعالیٰ ایمان والو ته دا خوشخبری ورکړیده چه په دنیا کښې به ضرور داسې څه کسان موجود وی چه هغه به په صحیح دین توحید او اتباع د سنت باندې روان وی، قرآن او سنت والا به ضرور موجود وی، داسې نشی کیدې چه په توله دنیا کښې صحیح عقیدې والا او متبعین د سنت ختم شی بلکه څه کسان به ضرور په صحیح دین باندې روان وی او دا به ترقیامته پورې وی تردې چه عیسیٰ علیه السلام راشی او دا دین اسلام خوبی او کمال دې۔

بیا دا ضروری نهٔ ده چه د دوی به یو تنظیم وی، یو به ئې مشر

وی، دا کسان که په دنیا کښې خواره واره وی او که په یو ځائے وی خو ضرور به موجود وی، او الحمد لله دا قسم خلق اُوس هم عامه دنیا کښې موجود دی۔ اګرکه فاسدان خلق زیات دی۔ او دا هغه خلق دی چه مهدی دپاره به لاره هموارووی او اُوس هم الحمد لله په ډیرو مسلمانانو او خصوصاً په صحیح مجاهدینو کښې دا بیداری پیدا شویده، دا فکر لری چه زمونږ یو عادل خلیفه (امام مهدی) راروان دے، د هغے دپاره الله تعالیٰ لارے برابروی، ډیرو خلقو ته د صحیح عقیدے او د اتباع د سنت توفیق ورکړے کیږی، دا نخے او آثار دی د رابنکاره کیدو د مهدی۔ او نزدے ده چه مسلمانان به دا رنړا وینی، ډیر مسلمانان د مهدی د پیدائش په باره کښې خوبونه وینی او الله تعالیٰ به هغه رشتینی کوی۔ ډیر ایمان والا په دین کلك ولاړ دی، ددے د ترقی دپاره جهادونه کوی، او د خپل سر او مال او وخت قربانی ورکوی د هیچا پرواه نهٔ ساتی، نهٔ د یو تنظیم، نهٔ د یو ملك او نهٔ د یو بادشاه که څوك ورسره مدد کوی او که نهٔ خو د الله تعالیٰ دپاره ئے کار روان کړے وی۔ نو مسلمانانو له پکار دی چه داسے خلقو ته شاباسے ورکړی او د هغوی هر قسم تعاون او مدد اُوکړی، دا به د هر چا خپله نیك بختی وی۔

دویم ددے نه معلومه شوه چه د عیسیٰ علیه السلام نه مخکښې به مهدی راځی او هغه به د خلقو مشری کوی کله چه سحر مانځه ته مهدی اُودریږی نو پدے کښې به عیسیٰ علیه السلام د آسمان نه راکوز شی لکه څنګه چه الله تعالیٰ دا وعده کړیده چه دا به راکوزیږی

چه ددې امت سترګې به پرې یخې شي۔ نو کله چه عیسیٰ علیه السلام راکوز شي نو مهدي به ورته عرض اُوکړي چه تاسو مونږ ته امامت راکړئ نو عیسیٰ علیه السلام به ورته اُووائي چه زه تاسو له امامت نۀ درکوم بلکه تاسو خپل مینځ کښې د یو بل امامت کولے شئ یعني دا د الله تعالیٰ کرامت او عزت دے ددے امت دپاره چه د رسول الله ﷺ یو امتي امام جوړیږي او عیسیٰ علیه السلام هغه پسے اقتداء کوي۔ دا ډیر لوئي منقبت او صفت د امام مهدي دے۔ بیا ددے مطلب دا نۀ دے چه مهدي غوره دے د عیسیٰ علیه السلام نه، بلکه حدیث کښې خپله وجه ذکر شوه چه پدے سره الله تعالیٰ دے امت ته اکرام او اعزاز ورکوي۔ اګرکه د مهدي راتلل هم د عیسیٰ علیه السلام د راکوزیدو دپاره مقدمه او تمهید دے، مهدي به عیسیٰ علیه السلام دپاره لاره هموارُوي جهادونه به کوي او د هغې نه روستو به عیسیٰ علیه السلام راکوزیږي۔ مهدي به ډیر جنګونه د کفارو سره کړي وي او بیت المقدس باندې به ئې غلبه کړي وي او په هغې کښې به مونځ ورکوي۔

بعض علماؤ دا لیکلي دي چه پدے زمانه کښې د مسلمانانو مخالفین درې قسمه خلق دي (۱) یهودیان (۲) هندوان (مشرکان) (۳) عیسائیان۔نو د مهدي جنګ به د عیسائیانو (یورپي یونین) سره وي، او د هندوانو او د ارتدادي فکر ښکار نام نهاد مسلمان حکمرانانو دپاره به د مهدي د طرف نه هندوستان ته د فدائیانو یو لښکر تشکیل کړے شي چه هغوي به ناکام کړي او بیا د یهودیانو

او د هغوی د مشر الدجال الاعظم د خاتمے دپاره به عیسیٰ علیه السلام راکوزیږی۔ ددے یو حکمت دا کیدے شی چه یهودو په عیسیٰ علیه السلام باندے بے تحاشا ظلم کړے وو، د هغه د وژلو کوشش ئے کړے وو، د هغه مخلص ملګری (حوارینو) خپل ځانونه په هغه باندے قربان کړل لیکن د هغه حفاظت ئے اُونکړے شو بیا دغه یهودیانو د مشرکانو په ملګرتیا کښ په محمد مصطفی ﷺ باندے هم ظلم کړے وو، د هغه د قتل ارادے هم کړے، د رسول الله ﷺ صحابه کرامو د هغه نه ګیر چاپیره د خپلو بدنونو یو دیوال جوړ کړے وو چه هیڅ یهودی هغے ته رسیدل نشو کولے نو الله تعالیٰ یدے وفاء او فدائیت باندے امت محمدیه ته دا انعام ورکوی چه لکه څنګه چه ددے امت ابتدائی خلقو د خپل پیغمبر سره یو ځائے شوی وو او د مدینے د یهودیانو خاتمه ئے کړے وه نو دغه شان ددے اُمت آخری خلق به د ټول عالم د یهودیانو په کلی طور سره د خاتمے دپاره دوباره په حیثیت د یو امتی راغلی پیغمبر سیدنا عیسیٰ علیه السلام سره ملګری کیږی او د مخکنو یاد به تازه کوی۔

دویم حکمت دا چه د جال سره به څه معمولی سائنسی طاقت نهٔ وی بلکه په مغرب کښ مصروف ترین خلق د تمامے دنیا ذهین ترین دماغ چه څه ایجاد کوی دا په اصل کښ د دجال د راښکاره کیدو دپاره میدان همواروی، دوی به دا ټوله ټیکنالوجی د هغه په لمن کښ داسے وارتوی لکه څنګه چه د اهل حقو نه خوش نصیبه خلق د مهدی په راښکاره کیدو او د عیسیٰ علیه السلام په راکوزیدو

باندے به خپل هر څه د هغوی په تله کښې واچوی نو د دجال اعظم داسے لوئی سائنسی طاقتونو او قوتونو د مقابلے دپاره الله تعالیٰ عیسیٰ ؑ ته داسے معجزانه قوتونه او طاقتونه ورکوی چه هغه به پرے ماتیږی۔

(دجال کون ص ۲۸)

لکه روستو به ددے تفصیل راشی۔

د دویم حدیث نه دا فائده معلومیږی چه نبی ﷺ دے امت ته خوشخبری ورکوی چه ستاسو به په هغه وخت کښې څه حال وی چه عیسیٰ ابن مریم راکوز شی او ستاسو امام ستاسو نه وی یعنی تاسو به څومره عزتمند یئ چه ددے امت یو امتی شخص د الله نبی عیسیٰ ؑ ته جماعت ورکوی او هغه عاجزی کوی چه زهِ جماعت ته نهٔ مخکښې کیږم تاسو ډیر لائق یئ چه د یو بل امامت اُوکړئ۔

لکه په یو بل روایت کښې رسول الله ﷺ د خوشحالئ په طورَ فرمائی : [مِنَّـا الَّـذِیُ یُصَلِّیُ عِیُسَی ابُنُ مَرُیَمَ خَلُفَهٗ] [الصحیحة ۲۲۹۳ صحیح] (هغه شخصیت زمونږ نه دے چه عیسیٰ ؑ به د هغه پسے روستو مونځ کوی)

**تبصره:** ددے نه د مهدی په باره کښې دا خبره هم حاصله شوه چه مهدی به هغه شخصیت وی چه د رسول الله ﷺ د سنتو صحیح تابعدار به وی او رسول الله ﷺ چه څنګه دعوت او جهاد شروع کړے وو او آخر کښې الله تعالیٰ مقصد ته اُورسولو او دین ئے پرے پوره

کړو او مظلوم انسانیت ئې د تیارو نه رنړا ته را اُوویستو نو دغه شان امام مهدی به هم د مظلوم انسانیت د خپلې تقویٰ او صلاحیت په ذریعه د امت تربیت کوی او دوی به رنړا او عدل او انصاف ته راوباسی۔ ان شاء الله تعالیٰ۔

## د مهدی جد وجهد او کارونه :

دلته دا سوال پیدا کیږی چه اُوس په دنیا باندې په ظاهری طور سره د مغربیت یو څادر خور دې، هر طرفته د ترقی آوازونه دی، ټیکنالوجی، سیاسی ترقی، فکری، معاشی، عسکری طاقت کښې مغربی طاغوتی طاقتونه مخکښې مخکښې روان دی، تقریباً پدې ټولو لارو باندې د مغرب قبضه او تسلط دې بل طرفته د مسلمانانو د هر قسم کمزورئ حال اُوګوره، نۀ د هغوی په شان مال متاع شته، نۀ یو سټیټ او حکومت شته او نۀ د هغوی په شان میډیا او ټیکنالوجی او سیاست شته نو مهدی به څنګه د دوی مقابله اُوکړې شی ؟ لکه دا سوال اُوس هم ډیر دنیا پرست خلق، د مجاهدینو مخې ته راوړی چه تاسو د یورپ مقابله کښې هیڅ نۀ ئې، تاسو به څه اُوکړې شئ، ځانله به داړې ماتې کړئ لکه داسې خبرې به د ډیرو مجرمینو، خلقیانو پرچمیانو نه آوریدلې شوې او آوریدلې کیږی هم۔ خو الحمد لله دا سوال وخت تر وخت خپل اهمیت کموی، خلقو د الله تعالیٰ مدد او د مجاهدینو قربانیانې او د کافرانو د هغوی نه خوف او دهشت اُولیدو، واوریدو، تردې چه د

هغوی سره اُوس د مذاکراتو د لارے مقابله کوی او پورپ او تول کافران پدے پوهه شو چه مونږ مسلمانان په مادی طاقتونو نشو وهلے، (٤٣) ممالك اتحادی جوړ شو، د مسلمانانو په خلاف ئے ایکدم شور او غوغاء جوړه کړه، هر طرف نه ئے د دهشتګردئ د خاتمے آوازونه پورته کړل او عالمی برادری ئے اعلان کړه لیکن څه اُوشو ؟ ددے پته هر چا ته اُولګیده چه هغوی صرف د خپل ځان په خلاصولو او ځان اُوبنکلو دی، د چا د لاسه اُوشو؟، هغه خلق چه د هغوی سره ظاهری ماده په درجه د صفر کښې، نوم ونشان ئے معلوم نهٔ، ځائے او عنوان ئے ورك، د داسے نا معلومه افرادو د زړه په اخلاص او صدق او د الله د محبوبیت، او محبت او د هغه د نصرت او مدد په برکت کښې دا هرڅه کیږی او مخلوق ئے وینی دغسے حال د مهدی او د عیسی علیهما السلام دے۔ دے کښې فکر اُوکړه حقیقتِ حال به واضح شی۔

ددے سوال د جواب **دویم رخ** داسے دے چه مهدی سره په ابتداء کښې چونکه ظاهری او مادی طاقت به هیڅ نهٔ وی لیکن چونکه د هغه تقویٰ او د هغه ښائسته تربیت به د الله په په فضل سره په خلقو کښې یو اثر پیدا کړی ځکه چه هغه یو عظیم قائد دے چه رسول الله ﷺ د هغه د صلاحیت او تقویٰ ګواهی ورکړیده او هغه ئے په طائفه منصوره کښې داخل کړیدے۔ بل طرفته د اسلامی غزواتو دا تاریخ راروان دے چه همیشه د غیر مساوی طاقتونو ترمینځ جنګونه شویدی اُوګوره جنګ بدر یو طرف ته (۳۰۳)

صحابه کرام کم جماعت او بل طرفته کافران (۱۰۰۰) زرکسان د هر قسم وسلو نه پوره۔ دغسې جنګ احد، غزوه مؤته کښې مسلمانان درې زره او کافران دوه لاکهه وو، قادسیه، یمامه تولو غزواتو کښې دا حال پاتې شویدې، د الله والو او شیطانی قوتونو په مابین کښې د زمکې او آسمان فرق وی، که داسې نۀ وې نو بیا خو به د حق او د باطل او د فتح پیمانه یو شان شوې وې، د حق او باطل تمییز به مشکل شوې وې۔ پدې وجه الله تعالیٰ همیشه کم خلق په ډیرو غالبه کوی۔ او دینی جنګونه همیشه په مادیاتو نۀ، په معنویاتو بناء وی۔

بل خوا کله چه مهدی د خپل قیادت ابتداء اُوکړی او ابتدائی جنګونه ئې د کافرانو سره راشی نو ډیرکافران به د مهدی د قیادت او صلاحیت او انصاف نه متأثره شی نو کله چه عیسیٰ علیه السلام راکوز شی نو ډیر خوش نصیبه عیسایان کوم چه رحم دل وی، او د انسانیت خدمت په اخلاص سره کوی دوی به په عیسیٰ علیه السلام د دهشت ګردئ د تنقید لګولو په ځائې په هغه باندې ایمان راوړی او د مسلمانانو په جهادی جماعت کښې به شامل شی نو دوی به څه حصه سائنسی طاقتونه ځان سره راوړی او د مسلمانانو تعاون به پرې کوی۔

(۲) دغه شان ډیر یهودیان کوم چه د موجوده متعصب سیاسی یهودیت یعنی د صیهونیت نه بیزاره دی (صیهونیت نه مراد سیاسی اسرائیلیت دې، ځکه چه صیهونی هر هغه شخص دې

چه د اسرائیلو حامي وی، برابره ده چه هغه یهودي وی او که غیر یهودي)۔ دا خلق دا خیال لري چه هرکله د یهودي ریاست قیام او د یهودیت عالمي غلبه د (مسیحا) په قیادت کښې کیږي، او هغه به یهودو لره د تاریخي ذلت نه نجات ورکوي نو بیا د اسرائیلو د قیام دپاره لکهونه فلسطینیان ولې بے کوره کولے او در په در کولے شي، او د هغې د استحکام دپاره د زرګونو خلقو قتلولو آخر ضرورت څه دے؟ ځکه چه مونږ خو د مسیحا کار هغه ته پرېنخودو او ددے مقصد دپاره مو خپل یهودیان مره کړل کوم چه د مسیحا د راتلو نه مخکښې حاصلیدے نشي، دے معتدلے فرقے ته (حَسِیُدی) وئیلے شي۔ دا ئے قدیم نوم دے، جدید نوم ئے (هیریډی) دے، دا انتهائي پخواني مذهبي یهودیان دي۔ چه اصل مرکزونه ئے په نیویارك او لندن کښې دي۔ دوی دا یقین لري چه صیهوني تحریك چه اسرائیلو قائم کړیدے دا په حقیقت کښې د (نفرت ریاست) هغه خطه ده چه پدے کښې به د تورات د پیشنګوئي مطابق یهودیان په آخره زمانه کښې راجمع کیږي او د الله د غضب او انتقام ښکار کیدو سره به نیست ونابود کیږي۔ ((ربائي هرش)) د دوی مشهور مذهبي رهنما دے۔

نو مهدي چه کله راشي نو دا قسم معتدل مزاج یهودیان به د خپل انصاف پسندئ په بناء په هغه باندے ایمان راوړي، او دوی به د خپل ځان سره سرمایه او ټیکنالوجي راوړي او د مسلمانانو په صفونو کښې به شامل شي نو پدے سره به د مسلمانانو ظاهري

طاقت هم څه حده پورې بهتر شي۔

حاصل دا چه د مهدی سره به درې قسمه قوتونه موجود شي (۱) صالح او قابل مسلمانان۔ (۲) سعادت مند عیسائیان او د هغوی تجربه او ټیکنالوجی۔ (۳) نیك بخت یهودیان، د هغوی سرمایه او علم، او ورسره د مهدی قابلیت، ذهنیت، جرأت او د هغه سره غیبی هدایت او صلاحیت او په هر موقعه کښې صحیح تکتیك او درستې فیصلې۔

او حالاتو بدلونکې الله تعالیٰ دې۔ مسلمان به همیشه د الله په وعدو نظر لري، داسې به نۀ وائی چه مونږ سره ټیکنالوجی، کمپیوټری طاقتونه، هوائی پروازونه نشته، اګرکه مسلمان په ظاهری طاقت حاصلولو هم مکلف دې ﴿ وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ﴾ لکه روستو به د عیسیٰ علیه السلام په باره کښې راشي چه هغه سره به ظاهری قوت دا وی چه زغره به ئې اچولې وی او د آسمان نه به په دغه حالت کښې راکوز شي۔ (انظر تفسیر الدر المنثور بسند قوی)

د مخکنو احادیثونه دا خبره راوځی چه مهدی به د بیعت سره سمدست جنګونه او جهادونه شروع کوی او د کافرانو د ذلیله کولو دپاره به فوجونه تیاروی۔ اول کښې به د هغه سره هیڅ طاقت نۀ وی بلکه کوم فوجونه چه د هغه په خلاف جنګ دپاره راولیږلې شي نو د هغې د مقابلې طاقت بـه هم نۀ وی مګر د الله تعالیٰ مدد هیچرته غائب نۀ دې۔ الله تعالیٰ به هغه سره داسې غیبی مددونه

کوی چه چا به لیدلے هم نهٔ وی، اول مدد ئے اُوګوره چه څنګه صلاحیت پکښې پیدا کوی، بیا اُوګوره د هغه په خلاف راوتونکی فوجونه الله تعالیٰ په زمکه ننباسی او ذلیله کوی ئے۔

## مهدی به کله راوځی ؟

د مهدی راوتل خو یقینی دی او د مسلمانانو عقیده ده چه دا به ضرور راوځی او زمکه به د عدل او انصاف نه ډکوی، علماؤ لیکلی دی چه د مهدی د وخت د راوتلو علم دومره اهم نهٔ دے څومره چه ډیره نازکه او خطرناکه خبره ده، د مهدی راوتل خو بهر حال صادق او رشتینی دی لیکن دا غم ځان سره پیدا کول چه آیا مونږ مهدی دپاره څه تیاری کړیدے او که نهٔ ؟ آیا زمونږ به د هغه سره ملګرتیا نصیب شی او که نهٔ ؟ دا خبره ډیره خطرناکه ده، لکه یو صحابی د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله ! قیامت به کله راځی ؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [وَيْلَكَ مَا اعَدَدْتَّ لَهَا] خوار شے، ته د قیامت د راتلو تپوس کوے، تا د هغے دپاره څه تیاری کړیده ؟)۔

((وَيْل)) لفظ ئے ورله ځکه استعمال کړو چه د قیامت راتلل دومره ضروری نهٔ دی، هغه خو به ضرور راځی که بنده ته د هغے علم اُوشی او که نهٔ، لیکن مهمه خبره دا ده چه قیامت راشی نو زمونږ حال به څه وی ؟ آیا مونږ به د نجات والو نه شمار شو او که نهٔ؟ او کوم اسباب دی چه مونږ د هغے په اختیارولو سره د نجات

مـوندونکو نه حساب شو؟ او کوم داسې اسباب دی چه د هغې نه په ځان ساتـلو سره د قیامت د هَوُل او دهشت او ګبراهټ نه محفوظ شو؟۔ الله تـعالیٰ دې مونږ ټول مسلمانان د قیامت د ګبراهټونو او پریشـانـو نـه په خپل فراخه رحمت سره محفوظ اُوساتی ځکه چه هـغه ډیره درنه ورځ ده او د هر انسان په سر پرته ده، د هیڅا خلاصې ترې نشته۔

الـغـرض : د مهـدی د راتـلـو وخت متعین کول دومره اهم نۀ دی بـلـکه مهم تیاری کول دی او دا خبره ځکه خطرناکه او نازکه ده چه مهـدی سره اګـرکـه د الله د طرف نه مدد کړې شویدې مګر د هغه سره په ملګرتیا کښ ډیر شدتونه او تکلیفونه او پریشانیانې قبلول، کور، او کاروبار پریخودل، بچی او خپلوان ترك کول دی، دغه شان د هـغـه سره هر څـوك مـلـګرتیا هم نشی کولې مګر هغه څوك چه خـالـص مسـلـمـان مجاهد وی، او په جهاد والو باندې ترحم کونکې وی۔ لکه د یو حدیث شریف د مضمون نه معلومیږی چه د مهدی مـلـګری بـه پـه مـخ د زمـکـه بهتـریـن صالحین مسلمانان وی او دهـغـوی فـضیـلـت بـه د بدر والو په شان وی۔ نو د هغه سره د مدد پریخودونکو خلق په باره سخت وعیدونه هم راغلی دی۔

پـه یـو اُوږد حـدیـث د مسـلـم کـښ راځی : ((پدې باندې (یعنی د مسـلـمـانـانـو کـافـرانو ته په نۀ حواله کولو باندې) به جنګ شروع کیـږی او مسـلـمـانـان بـه درې ډلـو تـه تـقسیـمیږی : (۱) یوه حصه لښـکـر بـه خـو د میـدانِ جـنګ نـه اُوتـختـی، د هغوی توبه به الله

تعالیٰ هیڅ کله نهٔ قبلوی۔ (۲) او یوه حصه لښکر به شهیدان کیږی۔ دا به د الله تعالیٰ په نیز افضل الشهداء وی۔ (۳) دریمه حصه لښکر ته به فتح نصیب کیږی، چه دوی به هیڅکله په فتنه کښې نهٔ اخته کیږی))۔ [صحیح مسلم ۷٤٦٠]۔

د مهدی مدد پریخودونکی به څوك وی؟ دا هغه خلق دی چه شرك او بدعت ئے دین گنړلے دے، خپله خُله یا عورت ئے د حرام سره آشنا کړیدے، هغه خلق چه په زړونو کښې د اهل حق او د کتاب او سنت والو سره کینه او بغض لری، په ژبه باندے غیبتونه او بهتانونه او دروغ وائی، په سترگو کښې ئے خیانت، د دنیا حریصان، په لاسونو کښې ئے بخل، کرپشن او فراډ دے، د منکراتو نه توبه نهٔ اُوباسی، او د دنیا نه د منکراتو د مکمل خاتمے دپاره د جهاد کونکو سره شاملیدو شوق نه لری نو دا خلق به په عینِ میدان جنگ کښې مهدی او د هغه ملگری پریدی او تیخته به کوی۔ او ډیر خلق به ترے پیدا کیدو سره سمدست نفرت اُوکړی، د بعض روایاتو نه معلومیږی چه د مهدی کار به توره چلول وی، هر طرف ته به توره توره وی، نو خلق به وائی چه دا څنگه مهدی ذے، دا خو په هیچا باندے رحم نهٔ کوی۔

بلـه دا چه مهدی به سلفی العقیده وی، د کتاب او سنت پابند او سنت رسول ته به دعوت ورکوی نو ډیر د تقلید دعوه کونکی خلق به د مهدی نه انکار کوی څکه چه هغه به هیڅ مذهب ته دعوت نهٔ ورکوی سوا د اسلام نه، نهٔ حنفیت، نهٔ شافعیت، نهٔ مالکیت، نهٔ

حنبلیت، نهٔ شیعیت وغیره ته بلکه هغه به صفا مسلمان وی۔ آیا
بے نمازه، بد عمله، دنیا پرست، په کبیره گناهونو همیش والے
کونکی شخص ته به د مهدی ملگرتیا نصیب شی ؟ دا ډیر د سوچ
خبره ده، د یو انسان په زړه کښې کله هم د الله نه یره او د هغه په دین
باندے خفگان او د دین غیرت رانشی او همیشه ئے په خپل کاروبار
و دنیا او مال باندے نظر وی نو آیا دا به د مهدی د ملگرتیا په
مقابله کښې پریدی څه ؟ ۔ الله دِے مونږ ته په دین استقامت راکړی۔
آمین۔
اَهم دا ده چه مونږ د مهدی نه مخکښې د مهدی دپاره څه قسم
عوتی، مالی جانی تیاری کړیده ؟ هسے نه چه د مهدی نه
مخکښې د فتنو ښکار نشو، داسے اُونشی چه د هغه مدد پریدو یا د
هغه مخالفینو سره شامل شو۔
آمدم بر سرِ مطلب :
مهدی به کله راوځی ؟
د مهدی د راوتو ورځ په احادیثو کښې په خاص طور متعین شوے
نو نهٔ ده چه فلانئ ورځ به وی، البته په احادیثو کښې ضرور د هغے
نه علامات بیان شویدی چه بعض صحیح او بعض ضعیف دی۔
۱ – یوه صحیح عامه علامه ئے خو دا ده چه مهدی به په داسے
ور کښې راځی چه دنیا به د ظلم او ستم او د بے انصافئ او تِیرو نه
ډکه وی۔ اُوس که نن صبا مونږ سوچ اُوکړو چه آیا دنیا د ظلم او بے
عدلئ نه ډکه نهٔ ده ؟ هر طرف ته تیارے د شرك، کفر، دهریت،

سوشلزم، پیپلزم، نیشنلزم، ماده پرستئ، بدعت، بخل، حسد او د فتنو او گناهونو سیلابونه دی۔

په مسلمانانو باندے څه څه تیریږی، ددے نه بچے بچے خبر دے۔ او ډیره ممکنه ده چه ددے نه هم په مسلمانانو ظلم او ستم زیات شی او کله چه د دوی د برداشت نه خبره اُوځی نو الله تعالیٰ به ورته خپلے غیبی خزانے راکولاوے کړی چه یو د هغے نه د امام مهدی رحمه الله په شکل کښ دے۔ او الله احکم الحاکمین دے۔

۲- یوه علامه دا ده چه د فرات دریاب نه به اُوبه واوړی او په هغے کښ به د سرو غر راښکاره شی۔ نو په هغے به د خلقو جنګ شی چه په سلو کسانو کښ به هر کس دا طمع لری چه دا به زه حاصلوم او زه به بچ پاتے کیږم لیکن رسول الله ﷺ فرمائی : چه نهه نوی کسان به پکښ تول قتل کړے شی صرف یو ته به حاصل شی۔ رسول الله ﷺ فرمائی : تاسو ددے نه هیڅ مه اخلئ۔ (متفق علیه)۔

بعض علماؤ لیکلی دی چه دا جګړه به د مهدی د راښکاره کیدو علامه او نښه وی۔

[احادیث مختارة من الصحیحین ۱۰۰) للشیخ سلیمان بن محمد اللهیمید]۔

بعض عصری اشخاصو ددے نه پټرول مراد کړیدی لیکن دا د ډیرو وجوهو نه باطله خبره ده ځکه چه د پټرولو خوا له ورتلل څ حرام نهٔ دی۔ دارنګه پټرول خو یواځے په فرات کښ نهٔ دی بلکه پ عامه دنیا کښ شته او بله دا چه پټرولو ته ذهب (سره زر) نشی

وئیلې نهٔ حقیقةً او نهٔ مجازاً۔ دارنګه نبی ﷺ دے نه تعبیر کړیدے په ((جَبَلٌ مِنْ ذَهَبٍ)) سره یعنی د سرو زرو غر به وی او پټرول خو تیل دی غر نهٔ دے۔

دجله او فرات دواړه د ترکی نه راوځی او په عراق تیریږی او په خلیج د عربو کښ پریوزی۔ ترکیانو په فرات باندے ډیر ډیمونه جوړکړیدی چه په هغے کښ اتاترك ډیم د دنیا د غټو ډیمونو نه دے۔ چه د هغے وسعت (۸۱٦) مربع کلو میټر دے۔ که ترکی حکومت اُوغواړی چه د فرات نهر اُوبه د عراق نه واړوی نو په آسانئ سره ئے بندولے شی او د نبی کریم ﷺ پیشنګوئی به دنیا په خپلو سترګو سره اُووینی چه د سرو زرو غر ښکاره کیدو سره سمدست دنیا به په هغے ورمنده کړی او په سلو کښ به نهه نوی پدے لالچ او طمع قتل کړے شی چه شاید دا خوش نصیب به همدا زه یم چه ددے مالك به جوړ شم۔ (دجال کون)

۳- **علامه** : د یو خلیفه په وفات کیدو سره به سخت اختلاف واقع شی۔ لکه دا حدیث مخکښ په حواله د مسند ابی یعلی بسند حسن) ذکر شو۔

ددے اختلاف نوعیت بعض علماؤ داسے بیان کړیدے چه د سعودی حکومت په تخت باندے به اتحادی افواج د خپلے مرضئ مطابق یو سړے کینول غواړی مګر مسلمانان به یو داسے شخصیت خوښول غواړی چه هغه د اتحادیانو د نظریاتو سراسر خلاف وی۔ بعض کسانو ددے مصداق شاه فهد ګڼړلو لیکن کله

چه هغه وفات شو او شاه عبد الله د هغه پوره جانشین شو او د هغه مکمل اعمال ئے سنبال کړل نو د هغه خلقو اندازو ته زبردست دهچکه اُورسیدله لیکن اندازے خو اندازے وی۔ د بعض کسانو په نیز د شاه عبد الله په وفات باندے داسے صورتِ حال مینځ ته راتلو اندازه نسبتاً زیاته ده۔

دا ټول علامات پدے دلیل دے چه د مهدی د راښکاره کیدو علامات تقریباً پوره دی، یا پوره کیدونکی دی۔

او خبره د کلونو په ځائے د میاشتو ده، نزدے دور کښ به د میډیا په ذریعه خبر شیٔ۔

اُوس به راشو د پخوانو کتابونو د پیشینګویانو نه هم دا ښکاره کیږی چه د مهدی دور دا دے کوم کښ چه مونږ فی الحال روان یو۔

## دانیال ﷺ د یو خوب تعبیر ورکوی د مهدی د راښکاره کیدو تاریخ، د اسرائیلی حکومت خاتمه بیانوی:

دانیال ﷺ د بنی اسرائیلو یو مقدس پیغمبر وو۔ کله چه یهودیانو باندے الله تعالیٰ د هغوی د بد عملیانو په وجه اول ځل بُخت نَصر بادشاه مسلط کړو او هغه د عراق نه راغلو او بیت المقدس پورے ځایونه ئے اُونیول، سلیمانی هیکل ئے مات کړو، د تورات نسخے ئے اُوسیزلے، د یهودیانو قتلِ عام ئے اُوکړو، ښارونه ئے وران او برباد کړل، د یهودیانو باقیمانده ماشومان ئے ځان سره بابل

تـه بـوتـلـل، غـلامـان ئې ترې جوړ کړل نو د هغه زمانې نه یهودیانو هلتـه د غـلامـانـو زنـدګی تیروله، الله تعالیٰ په هغوی باندې رحم اُوکړو او هـغـوی ئې د عذاب نه د خلاصولو دپاره بیا د انبیاء کرامو رالیږلـو سلسله شروع کړه، د هغه انبیاؤ نه یو نبی دانیال ؑ وو۔ دانیال ؑ پـه خپل شخصیت او کردار کښې د یوسف ؑ سره ژور مـمـاثـلـت او مشـابهـت لـرلـو۔ د بنی اسرائیلو دا دواړه پیغمبران په ابتـداء کـښې غـلامـان جـوړ کـړې شوی وو او بیا په یو اجنبی ملك کـښې د اجـنبی او مظلوم شخص په حیثیت کښې الله تعالیٰ په خپل کـامـل قـدرت سره د دوی جسمانی پرورش او روحانی تربیت اُوکړو تـردې چـه دوی پیـغـمبران جوړیدو سره دنیاوی اعتبار سره هم لویو لـویـو عـهـدو تـه اُورسیدل۔ دواړو تـه الله تعالیٰ د خوبونو خصوصی عـلـم ورکـړې وو، دوی بـه پـه مشـکـل حالاتو کښې هم الله تعالیٰ طرف ته دعوت ورکولو۔

پـه دواړو باندې فتنې والو تهمتونه لګولی وو چه د هغې نوعیت جـدا جـدا وو لیـکـن الله تعالیٰ پـه خپل کامل سره د هغوی پاکی او پـاکـدامـنی داسې دلائلو سره ښکاره کړه چه دشمنانو هم انکار نشو کولې او په معافیٔ باندې مجبوره شو۔

د بـخـت نـصـر نه روستو (نیبو شانیزار) بادشاه شو، هغه یو خوب اُولیـدو چـه د هـغـې په مطلب پو هیدو کښې پریشان شو، د ملك تمام مشهـور نـجـومیـان، جـادوګـران، کـاهـنـان او د راتـلـونکې زمانې حال ویـونکی ئې راجمع کړل او د خوب تعبیرئې ترې اُوتپوسلو، کله چه د

علم یې ځایه دعوئ کونکی ټول عاجز شو نو چا هغه ته د بنی اسرائیلو د یو پوهه او عقلمند ځوان دانیال (ؑ) اطلاع ورکړه، هغه راوغوختو، دانیال ؑ الله تعالیٰ ته فریاد اُوکړو چه په هغه باندې دا علم نور هم راکولاؤ شی، او ددې خوب تعبیر صحیح ورکړې شی۔ الله تعالیٰ د هغه دا دعاء قبوله کړه او هغه ته ئې د خوب صحیح صحیح مطلب القاء اُوکړه۔

د نیبوشانې زار پدې خوب کښې د هغه وخت د بادشاه نه نیولې تر قیامته پورې راتلونکی مختلف ادوار، حکومتونو او بادشاهانو متعلق پیشینګویانې شویدی، او هغه په ډیر حیرانتیا سره درست او صحیح ثابت شویدی۔ ماسوا د یو څو هغه خبرو نه چه یهودیانو او عیسایانو پکښې تحریف کړیدې او هغه ئې ګډوډ کړیدی او د هغې د منطبق کولو ناکام کوشش ئې کړیدې۔

د دانیال ؑ په کلام کښې د آخری نبی خاتم النبیین ﷺ متعلق واضح پیشنګویانې دی او دا چه یو ابدی پیغام او همیشه پاتې کیدونکې دین به ښکاره کیږی۔ دا اهل کتابو بد نصیبی چه دوی به د حقیقت نه انکار په هغه وخت کښې کوی کله چه د دوی مخې ته ښکاره شی۔ دلته مونږ د خوب نه هغه حصه راخلو چه هغه په عددی پیشنګویانو مشتمله ده چه په هر دور کښې په هغې باندې بحث او تحقیق شویدې۔ او اُوس هغه په کنارو باندې ښکاره کیږی۔

مینځ کښې یوه خارجی واقعه واوره : کله چه د عمر فاروق په

زمانه کښې تُسْتُر ښار فتح شو نو په فاتح فوجیانو کښې صحابه کرام او تابعینو د دنیال علیه السلام قبر اُولیدلو، د هغه جسم مبارك په یو تابوت کښې بالکل په اصل حالت کښې بغیر د څه تغییر او تبدیل نه موجود وو۔ د هغه په سر باندې د کپړې یو خط وو چه په هغې باندې په عجمی ژبه کښې څه لیکل شوی وو۔ په دغه فوجیانو کښې ابو العالیه ریاحیؒ او معترف بن مالك مشهور تابعین موجود وو، دوی دا خط عمر فاروق ته اُولیږلو۔ نو هغوی مشهور تابعی کعب الاحبار (چه اوله کښې د اهل کتابو نه وو بیا مسلمان شوے وو) راطلب کړو او ددې خط د عربی ترجمې مطالبه ئې ترې اُوکړه۔ ابو العالیهؒ فرمائی : چه د هغه ترجمه شوی خط اول لوستونکے زه اُوم۔ په هغې کښې ئې داسې لیکلی وو : [سِيَرُكُمْ وَاُمُوْرُكُمْ وَلُحُوْنُ كَلَامِكُمْ وَمَا هُوَ كَائِنٌ بَعْدُ] (ستا تمام تاریخ او معاملات، ستا د سحر په شان اثرناك بیان او ډیر هغه څه چه اُوس واقع کیدونکی دی)۔

(ابن کثیر :البدایة والنهایة ۴۲/۲) بیهقی دلائل النبوة (۳۸۱/۱) ابن ابی شیبة)

اُوس خپل اصل واقعې ته راځو : بادشاه دانیال علیه السلام راوغوختو، کله چه هغه راغلو، بادشاه اُووئیل : ما ستا په باره کښې آوریدلی دی چه د اِلهانو روح په تا کښې دے، او نُور او علم او کامل حکمت په تا کښې دے۔ حکیمان او نجومیان زما مخې ته عاجز شو چه دا لیکل اُولولی او ددې مطلب ما ته بیان کړی، لیکن هغوی ددې مطلب بیان نکړے شو او ما ستا په باره کښې آوریدلیٰ دی چه ته په تعبیر او حل د مشکلاتو باندې قادر ئې۔ نو که دا لیکل اُولولے او

ددې مطلب ما ته بیان کړې نو اُوچت انعام به مونده کړې، او ستا په څټ کښې به ښائسته طوق (امیل) واچولے شی۔ او ته به په مملکت کښې د دریمې درجې حاکم ئے۔ نو دانیال ﷺ بادشاه ته جواب ورکړو: ستا انعام دې تاسو سره پاتې وی، او خپل انعام بل چا ته ورکړه زه به بیا هم د بادشاه دپاره دا لیکل لولم او ددې مطلب به هغه ته بیانوم۔ (سوره دانیال: ۵پ، آیت: ۱۸،۱۳)۔

ددې نه روستو بادشاه خوب اُوئیلو او دانیال د هغې تعبیر اُوخودلو۔ ددې خوب نه چه کومه پیشنګوئی زمونږ د دور او په هره زمانه کښې د زرګونو کلونو نه روستو د یو خاص حکومت د قیام متعلق دې د هغې نوم هغوی (د نفرت ریاست) او (د ګناهونو مملکت) ایخودې دې۔

ددې ریاست د قیام نه د دنیا د انجام ابتداء کیږی او په هغې کښې د ګناهونو د ډیروالی نه دا ابتداء څپل طرفته زیاتوی او همدغه وخت به دوه مقدس روحانی شخصیتونه (جناب مهدی او عیسی علیهما السلام) او دوه لوئی فتنې (الدجال الاکبر او یاجوج وماجوج) ښکاره کیږی۔

د دانیال ﷺ د پیشنګوئی حصه دا ده:

((د شمالی بادشاه د طرف نه به فوجونه تیاریږی او هغه به محترمه قلعه ناپاك کوی، بیا به هغه روزانه قربانیانې اخلی، او هلته به د نفرت ریاست قائم کوی))۔

پدې عبارت کښې د محترم قلعې د ناپاك کولو نه مراد په مسجد

اقصیٰ باندے یهودی قبضه او هلته د خنزیر سموسو سره شراب نوشی مراد ده۔ د روزانه قربانیانو اخستو نه مراد د مونځونو باندے پابندئ ته اشاره ده، د قربانی نه عبادت مراد دے ځکه چه مونځونه روزانه کیږی او قربانی هره ورځ نهٔ کیږی۔ د نفرت ریاست چه په القدس (یروشلم) باندے به قبضه کولو سره هلته (گنهگار مملکت) قائموی، ددے نه مراد موجوده اسرائیلی ریاست دے۔ دا ریاست به څنگه قائمیږی ؟ او ددے کرتوت به څنگه وی ؟ هغه اُوگوره :

((او افواج به ددے مدد کوی او هغه به محکم مقدم ناپاك او دائمی قربانی موقوف کوی، او ورانیدونکے مکروه شے به نصب کوی او هغوی به د عهد مقدس خلاف شرارت کونکی راپورته کوی لیکن خپل خدائے پیژندونکی خلق به تقویت مونده کړی او څه کولو سره به اُوښائی))۔ (تورات : ص : ۸٤٦ ......دانیال : ب ۱۱، آیت : ۳۲-۳۱)

د نفرت ریاست مدد کونکی د امریکے او برطانیه فوج دے۔ ورانیدونکے مکروه شی د اُودرولو نه مراد د مسجد اقصیٰ په ځائے د دجال قصر د صدارت قیام دے۔شرارت کونکو لره راپورته کونکو نه مراد عیسائی دنیا راپورته کولو سره د صیهونی مقاصدو د تکمیل دپاره استعمالول دی۔ د خپل خدائے پیژندونکو څه کولو نه د فلسطینی فدایانو بے مثال مزاحمت طرفته اشاره ده او دا د هغوی د الله پرستئ او د الله په نیز د مقبولیت واضح زیرے

دے چه ددے مظلومانو د زخمونو مَرُهم دی۔

دا ریاست به کله قائمیږی؟ نو دانیال ﷺ فرمائی:

((بیا ما دوه مقدس غیبی آوازونه واوریدل چه وئیل ئے: دا معامله به تر څو پورے داسے چلیږی چه کُوربَه (میزبان) او مقدس مقام به د قدمونو لاندے پائیمال کړے شی؟ بیا دویم آواز جواب ورکړو: ((دوه زره درے سوه ورځو پورے۔ بیا به دا مقدس مقام پاك او صفا کړے کیږی))

(تورات: ص: ۸٤٦...... دانیال: ب ۸آیت: ۱٤،۱۳)

ددے پیشنگوئی نه معلومه شوه چه د نفرت ریاست به (۲۳۰۰) کاله بعد قائمیږی۔

د کوم وخت نه (۲۳۰۰) کاله بعد ؟؟؟۔

دا به روستو ذکر کړو لیکن اول دا پیشنگوئی واوره چه د هغے نه معلومیږی چه دا ریاست به د (٤٥) ورځو نه بعد ختمیږی۔

دانیال ﷺ فرمائی: ((اګرکه ما د ملائکو دا خبره واوریدله لیکن زه پرے پو هه نشوم، نو ما د الله نه دعاء اُوکړه: اے الله! دا لوبه به څنګه ختمیږی؟ الله جواب ورکړو: دانیال د خپل کار سره کار لره۔ په الفاظو باندے قفل وهلے شویدے او په معاملاتو باندے مهر لګولے شویدے۔ اُوس آخری وخت راتلو باندے به راز ښکاره کیږی په هغه ورځ چه قربانیانے به اخستلے کیږی او د نفرت ریاست به قائم کړے کیږی۔ ددے نه بعد به یو زر دوه سوه نوی (۱۲۹۰) ورځے باقی پاتے کیږی۔ مبارك دی هغه خلق چه یو زر درے سوه پنځه

دیرش (۱۳۳۵) ورځو ختمیدو ته به رسیږی۔ لیکن (اے دانیال) ته خپل کار د دنیا د اختتام پورے کوه۔ تا ته به آرام درکولے شی))۔
(تورات : ص۸٤۷، ب ۱۲، آیت : ۸،۱۳)۔

عیسائی او یهودی شارحین دلته د سخت تذبذب ښکار شویدی، هغوی پدے نهٔ پو هیږی چه پدے کښ د وخت کوم تعیین چه شویدے، د هغے نه څه مراد کیدے شی ؟ ځکه په دنیا کښ داسے ریاست نشته چه (۲۳۰۰) ورځے بعد قائم شوے وی او محض د(٤٥) ورځو پورے قائم پاتے کیدو نه بعد ختم شوے وی۔ (٤٥-۱۲۹۰-۱۲۳۵)

لیکن هغوی له پکار دی چه د تورات نه مدد واخلی ځکه چه په تورات کښ د ورځو نه کلونه مراد وی۔ لهذا د پنځه ځلویښتو ورځو نه پنځه ځلویښت کلونه مراد دی۔

نو اُوس د پیشنگوئی مطابق ددے ریاست قیام به (۲۳۰۰) کاله بعد کیږی۔ د تورات او د انجیل د شارحینو مطابق ددے کلونو ابتداء د اسکندر اعظم د ایشیا د فتح کولو نه کیږی چه هغه د مسیح نه درے سوه درے دیرش (۳۳۳) کاله مخکښ فتح کړے شوے وو۔ نو د نفرت ریاست قیام به د مسیح درے سوه درے دیرش (۳۳۳) کالو نه مخکښ د (۲۳۰۰) کاله بعد وی۔ یعنی د (۳۳۳) نه تر (۲۳۰۰) کاله بعد به وی۔ یعنی (1967 = 333 -2300 ) یعنی دا په (1967ء) کښ۔

او دا هغه کال دے چه پدے کښ اسرائیلی افواج القدس ته داخل

شو او د مسجد اقصیٰ د سیزلو هیبتناکه واقعه راپیښ شوه۔ اسرائیلی حکومت اګرکه په (١٩٤٨ء) کښ جوړ شویدے، لیکن القدس (یروشلم) ته رسیدل کوم چه د دوی اصل مقصد دے هغه په سنه (١٩٦٧ء) د اسرائیلو په قبضه کښ راغلو۔

اُوس که دا ریاست د خپل قیام نه (٤٥) کاله بعد تباه او بربادیږی او ددے بربادی د عیسیٰ ﷺ او د مهدی د فوجونو په لاس کیږی او د دجال او ګستاخ یهودیانو کلی خاتمه به کیږی نو بیا د بعض محققینو دا وینا ده چه د (٢٠١٢ء = ١٩٦٧ء) فارمولے نه د نفرت ددے ګنهګار مملکت ختمیدل ...... یا د ختمیدو د شروع ...... زمانه به د (٢٠١٢ء) خواؤ شا جوړیږی۔ چه په هجری لحاظ سره (١٣٨٧+٤٥= ١٤٣٣ هـ) سره جوړیږی۔ والله اعلم بالصواب۔

دا تمام تفصیل د ډاکټر سفر بن عبد الرحمن الحوالی په کتاب یوم الغضب چه د هغے ترجمه په اردو ژبه کښ د ((روز غضب)) په نوم شویده په هغے کښ ډیر تفصیلی شواهدو سره د دانیال ﷺ دغه تعبیر ذکر شویدے چه په هغے کښ زمونږ د پیغمبر او د هغه د صحابه کرامو رضی الله عنهم طرف ته اشارات هم په کثرت سره ملاویږی د هغه کتاب کتل هم ډیر اهمیت لری ددے نه بعد دجال کون کب کہاں ص (٧٩) هم اُوګورئ۔

روز غضب ص (١٠٢) تالیف: سفر الحوالی۔ ترجمه: حامد کمال الدین۔

ددے تمام تفصیل نه دا خبره واضحه شوه چه که یهود منی او که نه منی خو ضرور به شکست د هغوی په نصیب کیږی او د

فلسطین زمکه به د هغوی د لاس نه اُوځی او د هغوی د آخری بربادئ ښکار کیدل یقینی دی۔

زمکه د ظلم نه ډکونکے امریکا ده او د الله د سزاګانو نه مراد هواء طوفان، زلزلے او طاعون (ایډز) دی، چه امریکائے د هر طرف نه راګیره کړیده۔ د عالمی شر د ختمے نه بعد به د عالمی خیر وخت راځی او الله به هغه وفادار بندګانو ته انعام ورکوی کوم چه د حق په فتح باندے په عاجزئ سره د هغه شکر ادا کوی۔

((ځکه بیا به زه خلقو ته یوه پاکیزه ژبه ورکوم چه هغوی به د الله نوم یادوی او اُوګه به د اُوګے سره ملاووی، عبادت به کوی))۔
(صنفیاه ۹:۳) (روز غضب ص: ۲۰۴)

ټول دنیا والا په عام طور او اهل کتاب په خاص طور باندے پوهیږی چه د دنیا هیڅ داسے قوم نشته چه اُوګه د اُوګے سره ملاووی او د قلعی په شان دیوال جوړولو سره د الله عبادت کوی سویٰ د یو امت اسلامیه نه۔ د دوی ژبه د ټولونه پاکیزه خبره کوی، د دوی د شوندو د پاکئ دپاره همدا خبره کافی ده چه دوی د الله په باره کښ هیڅ ناروا خبره نۀ کوی مثلًا دچا په باره کښ دا نۀ وائی چه د فلانی د الله ځوی دے یا دا چه الله د لاعلمئ او نسیان (هیرے) ښکار کیږی او په خپله غلطئ باندے پښیمانه کیږی لکه څنګه چه یهود او نصاریٰ دا خبره کوی سبحانه وتعالی عما یقولون علوا کبیرا۔

(روز غضب ص ۲۰۴)۔

د بنی اسرائیلو په نیز د دانیال علیه السلام ددے خوب تعبیر ورکول د تهولو نه زیات معتمد تاریخ دے او هغوی ددے ډیر قدر کوی لیکن التهٔ په دے کښ په دوی باندے هلاکتونه لیکلے شویدی او ضرور به الله تعالیٰ دا خوب راښکاره کوی اګرکه مونږ وخت متعین نه کړو لیکن په مطلق طور سره مونږ د دوی سره دا شرط هم تړلے شو چه ضرور به دغسے کیږی او دا خوب به رشتینی کیږی۔ دا خوب زمونږ د دین عین مطابق دے او پدے کښ د مهدی او د عیسیٰ علیه السلام د راتللو خبرونه ورکړے شویدی او د یهودیانو او د عیسیانو هلاکتونه ذکر دی او د هغوی شیطانی او د نفرت ریاست (اسرائیل) به زرتر زره ختمیږی او مسلمانان به ضرور د هغوی د پنجے نه آزادیږی او دا وخت څه بعید نهٔ دے۔ الله دے اُوکړی چه مونږ ټول مسلمانان د خپلو مشرانو (مهدی او عیسی علیهما السلام) تابعدار اُوګرځوی او داسے فتنے او امتحانات رانهٔ ولی چه مونږ د هغوی د ملګرتیا نه محرومه پاتے شو او الله تعالیٰ دے په مونږ کښ داسے محرکات او اسباب پیدا کړی چه مهدی ته لاره همواره کړے شی او مونږ د هغه د ملګرتیا نه محرومه نشو۔ آمین۔

**تنبیه** : په بعض روایاتو کښ دا راغلی دی چه د مهدی نه مخکښ به دوه کسان راځی چه هغه ته حارث بن الحراث او منصور وئیلے شی چه هغه به د نبی ﷺ د آل دپاره لاره هموار وی (ابوداود) نو محققینو علماؤ لیکلی دی چه دے باره کښ راغلی

روایتونه ضعیف دی۔ لهذا د هغې نه بحث کول دومره فائده مند نۀ دی۔

البته دومره خبره ضرور شته چه د مهدی نه مخکښې لاره هموارونکې ډله به موجوده وی کوم ته چه مخکښې احادیثو کښې اشاره اُوشوه۔

## د مهدی کیدو د دروغو دعوی کونکو تردید

په دې امت کښې ډیر داسې خلق تیر شویدی چه هغوی د مهدیت دعویٰ کړیده، دا دعویٰ د ابتداء د زمانې د تابعینو نه تر نن تاریخ پورې روانه ده، لکه محمد بن عبد الله بن تومرت البربری المصمودی متوفی (۵۲۴هـ) الحسین بن منصور الحلاج، عبید الله بن المهدی العبیدی المتوفی (۳۲۲هـ) المعز بن المنصور الفاطمی العبیدی المتوفی (۳۶۵هـ) دغه شان نورو ډیرو کسانو په دروغه دعویٰ کړې وه لیکن په هغه تولو کښې د مهدیت صفت نۀ وو موجود۔ ددې تفصیل د جلال الدین سیوطیؒ په کتاب ((العرف الوردی فی اخبار المهدی)) ص (۲۶) کښې اُوګورئ۔

کومو کسانو چه د مهدیت دعویٰ کړیده د هغې په تردید کښې **دلائل** دا دی:

۱- اول دا چه د مهدی علامه په حدیث شریف کښې دا خودلې شویده چه هغه به امامت او عهده او منصب به نۀ قبلوی او ددې نه به انکار کوئ۔

۲ – دویـم دلیـل : دا دے چه د مهدی د ښکاره کیدو نه مخکښ به مهـدی د خپـل مـقـام او مـنـصــب نـه واقف نـهٔ وی۔ د هغـه خپـل صـلاحیتـونـه بـه پـه هـغـه باندے پټ وی او د یو عام انسان په شان زنـدګـی بـه تیـروی۔نو هغه به څنګه د مهدی کیدو دعوه اُوکړی۔ لکه مخکښ حدیث ذکر شویدے : (يُصْلِحُهُ اللّٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ) [ابن ماجه باب خروج المهدی، ٤/٣١٠]

(الله به ئے په یوه شپه کښ اصلاح اُوکړی)۔

0000000

## دویمه خبره

## د مسیح عیسی علیه السلام راتلل :

په دنیا کښې یهود او نصاریٰ او مسلمانان درے واړه د یو مسیح انتظار کوی چه هغه به د دوی مشری کوی او دوی ته به نجات ورکوی لکه په سنه (۱۹٦٧ء) نه مخکښې به هغوی دا دعاء کوله : (اے الله ! دا کال په یروشلم کښې) لیکن د (۱۹٦٧ء) نه روستو د هغوی په شونډو باندے دا الفاظ دی : (اے الله ! مسیحا ډِے زر راشی) په عیسایانو خصوصاً په امریکی او برطانوی عیسائیانو کښې ((مسیح راروان دے)) نعره عامه ده۔ بیا په دوی کښې فرق دا دے چه یهودیان د خپل مسیح (دجال اکبر) په انتظار کښې دی۔ او مسلمانان او عیسایان د مسیح ابن مریم په انتظار کښې دی، د هغه دپاره لاره هموارِوی مگر عیسایانو ته په پیشنگویانو کښې تحریف واقع شویدے او د مخکنو کتابونو پیشنگویانے ئے په غلط مصداقاتو حمل کړیدی او د هغوی دا گمان دے چه گنے عیسٰی به زمونږ ملگرے وی لیکن صرف مسلمانان داسے دی چه د هغوی سره د رشتینی نبی رشتینے کلام موجود دے چه هیڅ تغییر او تبدیل پکښې نهٔ دے شوے او هغے نه دا ثابتیږی چه عیسیٰ علیه السلام به د مسلمانانو د مدد دپاره راځی او د یهودو به سخت ترینه مقابله کوی۔

د قیامت د علاماتو تذکره چه کله هم کیږی نو د عیسیٰ علیه السلام ذکر پکښې ضرور کیږی ځکه چه دا د قیامت د علاماتو نه لویه علامه ده۔ لکه قرآن کریم فرمائی :

﴿ وَاِنَّهٗ لَعِلۡمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمۡتَرُنَّ بِهَا﴾ (الزخرف : ٦١)

(او یقیناً دا (عیسیٰ علیه السلام) د قیامت علامه ده پس تاسو هیچرے د قیامت په باره کښې شك مهٔ کوئ) ۔

الله فرمائی : ﴿ وَمَا قَتَلُوۡهُ يَقِيۡنًا بَلۡ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيۡهِ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيۡزًا حَكِيۡمًا، وَاِنۡ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتَابِ اِلَّا لَيُؤۡمِنَنَّ بِهٖ قَبۡلَ مَوۡتِهٖ وَيَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ يَكُوۡنُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا﴾

[النساء : ١٥٧،١٥٩]

او یقینی خبره ده چه دوی هغه (عیسیٰ علیه السلام لره) نهٔ دے قتل کړے، بلکه الله تعالیٰ هغه خپل طرف ته پورته کړیدے، او الله ډیر زوروَر او حکمتونو والا دے، د اهل کتابو نه به هیڅوك هم داسے نهٔ پاتے کیږی چه هغه په عیسیٰ علیه السلام باندے د هغه د مرګ نه مخکښې ایمان رانهٔ وړی او په ورځ د قیامت به په هغوی باندے ګواه وی)۔

عیسیٰ علیه السلام یهودیانو په ابتداء کښې هم ډیر ظلمونو او تشددونو سره مخامخ کړے وو او د هغه هر قسم مقابلو دپاره ئے ځانونه وقف کړی وو، د هغه د وژلو ارادے ئے کړے وے لیکن الله تعالیٰ ترے هغه صحیح سلامت آسمانونو ته پورته کړو او یهودیان حیران پاتے شو لیکن کله چه دا یهودیان په آخره زمانه کښې شرارتونه تیز کړی او فسادونه او ظلمونه انتهاء ته اُورسوی او د دوی مشر الدجال الاکبر

د خپلے مصنوعی او فرضی ربوبیت مظاهره اُوکړی او په تولو زمکه باندے د انسانی بغاوت عظیمه مظاهره اُوکړی او د تول کائناتو د تسخیر ناپاکه اراده اُوکړی او مهدی او د هغه سره موجود فاتحین د یورپ او عیسائیت مجاهدین ئے په سخت مشقت کښ اچولی وی نو د دغه دجال د قتلولو او د تولو دجالی قوتونو (یهود او د هغوی د ملګرو) د ختمولو دپاره به عیسیٰ ؑ راکوزیږی او داسے عجیب رحمانی قوتونه به الله تعالیٰ ورکوی چه د هغے په وجه به دجال ویلی کیږی او دا به په مخ د زمکه باندے د مکر او فریب او دجل او شیطانت د علمبردارانو آخری ورځ وی چه د هغے نه روستو به د برکات او خیرونو او مزو ورځے شروع کیږی۔

## د مسیح لفظ معنیٰ :

په قرآن کریم او احادیثو کښ عیسیٰ ؑ ته مسیح ابن مریم وئیلے شویدے۔ او دغه شان دجال ته هم مسیح وئیلے شویدے نو د مسیح معنیٰ څه ده او دواړو ته مسیح ولے وئیلے شی ؟۔

مَسِیح د مسح نه دے چه د هغے ډیرے معانی راځی چه هغه د هغه تولو اطلاق په عیسیٰ ؑ او دجال باندے صادقیږی۔

(۱) د مسیح د مسح نه دے په معنیٰ ده ګوتے وروړل او لاس راښکلو سره۔ عیسیٰ ؑ ته مسیح ځکه وئیلے شی چه هغه به کله په یو مصیبت زده باندے لاس راښکلو نو هغه به د الله په اذن سره صحتمند شو۔

(۲) مسیح د سیاحت نه دے، نو عیسیٰ ؑ به د دعوت الی الله

دپاره په زمکه کښې سیاحت کولو او گرځیدلو به نو ځکه ورته مسیح وئیلے شی۔

او دجال ته مسیح ځکه وائی چه هغه به د گمراهئ او شر خورولو دپاره په زمکه کښې گرځی۔

نو مسیح په معنیٰ د ماسح (اسم فاعل) سره شو۔

(۳) عیسیٰ ﷺ چه به کله قدم کیخودلو نو خپه به ئے پوره په زمکه لگیدله، په قدم کښې ئے خالی گاه نۀ وه۔ پدے وجه ورته مسیح وئیلو شو۔

(٤) یا ورته مسیح پدے وجه وئیلے شی چه دا په برکت سره مسح کړے شوے وو یا د گناهونو نه پاك کړے شوے وو پدے وجه هغه د برکت والا وو او مسیح معنیٰ ده مُبارك یعنی برکتناك۔ نو مسیح په معنیٰ د ممسوح سره شو۔

(۵) ابراهیم نخعیؒ فرمائی: دمسیح معنیٰ ده صدیق، دوست۔

او دجال ته مسیح پدے وجه هم وائی چو د هغه یوه سترگه مسح کړے شویده۔ یعنی سترگه او وروځے ئے برابرے شویدی۔

ابن فارسؒ وائی: مسیح هغه ته وائی چه د هغه د مخ دواړو حصو نه یوه حصه ورانه شوی وی۔ چه په هغے کښې نۀ سترگه وی او نۀ وروځے۔ پدے وجه دجال ته مسیح وئیلے شی۔

[فتح الباری ۱۸۸/۱]

## ۱- د عیسی ؑ زمکے ته راکوزیدل حق دی :

دا د مسلمانانو صحیح عقیده ده چه عیسیٰ ؑ ژوندے آسمانونو ته پورته کړے شویدے او قیامت ته نزدے به دوباره زمکے ته راکوزیږی او د نبی ﷺ د دین تائید به کوی او د مسلمانانو ملاتړ او ملګرتیا او د هغوی د مخالف قوتونو سرکوبی به کوی۔ او په مخ د زمکه به خلافتِ راشده قائموی۔

دا عقیده په قرآنی آیتونو او متواترو احادیثو سره ثابته ده او ددے نه انکار کول کفر دے، مخکنو زمانو کښ جهمیه او بعض معتزلو او دے نزدے زمانه کښ سرسید احمد خان او مرزا غلام احمد قادیانی او نور څه ګمراهان ډاکټران او سکالران ددے نه انکار کوی، باقی د ټول امت مسلمه ترمینځ د عیسٰی ؑ نزول منلے شوے عقیده ده۔ کومو خلقو چه د عیسیٰ ؑ د آسمان ته د ختلو او بیرته راکوزیدو نه انکار کړیدے هغوی عقل پرست وو او د مرزا قیدانی په شان نفس پرست او خواهش پرست او د انګریزانو د طرف نه د جهاد نه د انکار کولو او ځان مسیح ثابتولو دپاره رالیږلے شوی وو۔

## ۲- د عیسی ؑ تعارف او حلیه :

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : زما او د هغه یعنی عیسیٰ ؑ ترمینځ هیڅ نبی نشته

او هغه به راکوزیږی نو کله چه تاسو هغه اُووینئ نو تاسو به ئے اُوپیژنئ، د هغه قد او قامت به درمیانه او رنگ به ئے سور سپین وی، په معمولی زیړ رنګه دوه کپړو کښې به وی، د هغه د سر ویښتو ته به څه لوندوالے نهٔ وی رسیدلے لیکن بیا به هم (د چمك او صفائی په وجه) داسے وی چه ګویا د هغې نه اُوبه څاڅی، د اسلام دپاره به د کافرانو سره قتال کوی، پس صلیب به ماتوی او خنزیر به قتلوی او جزیه اخستل به بندوی، او د هغه په زمانه کښې به الله تعالیٰ د اسلام نه سویٰ تول مذاهب (دینونه) ختموی او (د هغه په لاسونو) به مسیح دجال هلاکوی۔ نو عیسیٰ ﷺ به په زمکه کښې څلویښت کاله اُوسیږی بیا به وفات کیږی نو مسلمانان به په هغه باندے د جنازے مونځ کوی»۔ [ابوداود ٤٣٢٤) (احمد ٢/٤٠٦، عبد الرزاق، ابن ابی شیبه) صحیح ابن حبان، ابن جریر]

په صحیح بخاری کښې په یو حدیث کښې د عیسیٰ ﷺ نور علامات دا خودلے شویدی : [رَجُلٌ آدَمُ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ، مِنْ أُدْمِ الرِّجَالِ سَبْطُ الشَّعْرِ، لَهُ لِمَّةٌ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنَ اللِّمَمِ، تَضْرِبُ لِمَّتُهُ بَيْنَ مَنْكِبَيْهِ يَقْطُرُ رَأْسُهُ مَاءً، رَبْعَةٌ أَحْمَرُ، كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيْمَاسٍ] [صحیح البخاری رقم ٣٤٤٠) کتاب احادیث الانبیاء والصحیحة]

(عیسیٰ ﷺ به انتهائی ښائسته غنم رنګے وی، ویښته به ئے پراته وی (کوږ به نهٔ وی) د هغه به د اُوګو پورے ویښته وی، د سر نه به ئے اُوبه څاڅی، درمیانه جسم او قامت والا به وی، سور والی ته مائل رنګ به ئے وی، لکه اُوس چه د حمام نه (د غسل کولو سره)

راوتلے وی)۔

سیدنا عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أَطُوفُ بِالْكَعْبَةِ فَإِذَا رَجُلٌ آدَمُ سَبْطُ الشَّعْرِ يَنْطُفُ أَوْ يُهْرَاقُ رَأْسُهُ مَاءً قِيلَ مَنْ هٰذَا ؟ قَالُوا : ابْنُ مَرْيَمَ ]

(مسلم کتاب الایمان باب نزول عیسی ابن مریم علیهما السلام ......الخ (۱۵۵)

(زه اُوده وم (او په خوب کښې) مے د کعبے طواف کولو چه ناڅاپه ما یو شخص اُولیدو چه غنم رنګے وو، د هغه د سر ویښته نیغ وو، او د هغه نه اُوبه څڅیدلے، ما تپوس اُوکړو چه دا څوك دے ؟ خلقو اُووئیل : دا (سیدنا) عیسی ابن مریم (ؑ) دے)۔

نو عیسی ؑ قوی بدن والا ځوان دے، غنم رنګے سور والی ته مائل شخص دے او په یو روایت کښې راغلی دی چه عریض الصدر (پلنے سینے والا) دے۔ کوتلی بدن والا دے۔ په شکل کښې د عروه بن مسعود ثقفی سره زیات مشابه دے۔

## ۲- د عیسی ؑ ملګری به څوك وی ؟۔

عیسٰی ؑ به د کومو خلقو په مابین کښې راکوزیږی ؟ په کوم وخت او په کوم کیفیت به نازلیږی ؟ د کومو خوش نصیبه خلقو په مینځ کښې چه نازلیږی د هغوی کوم صفات دی چه د هغوی په بناء دوی ددے لوئی سعادت او نیك بختئ مستحق شو چه د الله د پیغمبر سره ئے دوستی نصیبه شوه ؟۔ دے باره کښې احادیث واوره :

○ جابر ؓ فرمائی : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه

فرمایل ئے : زما په امت کښ به یوه ډله (نزدے) قیامته پورے په حق باندے ولاړه وی چه ددے د پورته کولو دپاره به جنګونه کوی۔ وے فرمایل : پس عیسیٰ ﷺ به نازل شی نو ددے جماعت امیر به اُووائی چه راشئ مونږ ته مونځ اُوکړئ ؟ نو هغه به اُووائی نهٔ، الله دے امت ته عزت ورکړیدے پدے وجه تاسو نه بعض به د بعضو امیران وی۔ (مسلم واحمد)

**تبصره** : ددے نه معلومه شوه چه د عیسیٰ ﷺ ملګری به هغه خلق وی چه د کافرانو سره مقابلے کوی او په حق باندے مضبوط ولاړ وی او جهادونه کوی۔

○ حدیث کښ راغلی دی : زما د امت نه دوه ډلے دی چه الله تعالیٰ د اُور نه محفوظ ساتلی دی، یوه هغه ډله ده چه د هندستان سره به جنګ کوی او دویمه هغه ډله ده چه د عیسیٰ ﷺ ملګری به وی۔

[النسائی ٦٤/٢) واحمد (٢٧٨/٥) والحدیث صحیح - البانی]

○ - دجال به د مدینے سختے ښوره ناکے زمکے لره راشی خو په هغه باندے حرام دی چه د مدینے په لارو داخل شی نو په مدینه به یوه یا دوه زلزلے راشی نو د هغے نه به هر منافق سړے او منافقه ښځه رابهر شی بیا به دجال شام طرف ته واوړی تردے چه د شام بعض غرونو خوا ته راشی نو د هغے نه به ګیره واچوی او باقی مسلمانان به په دغه ورځ د شام د غرونو نه د یو غر په سر کښ پناهی اخستی وی نو دجال به د هغوی نه محاصره اُوکړی او د غر

پـه بیخ کښې به پراؤ واچوی۔ کله چه په مسلمانانو باندې مصیبت اُوربد شی۔

یو سړے د مسلمانانو به اُووائی :

[يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ ! حَتّٰى مَتٰى اَنْتُمْ هٰكَذَا وَعَدُوُّ اللّٰهِ نَازِلٌ بِاَرْضِكُمْ هٰكَذَا ؟]

اے د مسلمانانو ډلے ! ترڅو پورے به تاسو پدے حالت کښې یئ او د الله دشمن (دجال) ستاسو زمکے ته پداسے حال کښې راغلے دے؟ تاسو دپاره یو د دوه ښه کارونو نه دی یا خو به تاسو ته الله تعالیٰ شهادت درکړی یا به غلبه درکړی۔ نو دوی به په مرګ باندې بیعت اُوکړی چه الله ته معلومه ده چه دا د دوی د زړونو نه رشتینی بیعت دے۔بیا به په دوی باندې داسے تیاره راشی چه هیڅ یو تن به پکښې خپل لاس نهٔ وینی۔ وے فرمایل : پس (پدے کښې به) عیسیٰ ؑ راکوز شی نو د دوی د سترګو نه به تیاره پورته شی۔ او په هغه وخت به په عیسیٰ باندې یوه زغره وی نو خلق به د هغه نه تپوس اُوکړی چه ته څوک یې ؟ نو هغه به اُووائی : زه عیسی ابن مریم د الله بنده او رسول یم، او د هغه (پیدا کړے) روح او د هغه کلمه یم (یعنی د پلار نه بغیر په کلمه د کُن سره پیدا شوے یم) تاسو د درے صورتونو نه یو اختیار کړئ (۱) یو دا چه الله په دجال او د هغه په فوجونو باندې د آسمان د طرف نه لوئی عذاب نازل کړی۔ (۲) یا هغوی په زمکه داخل کړی۔ (۳) یا په هغوی باندې ستاسو اسلحه مسلط کړی او د هغوی اسلحه ستاسو نه بنده کړی۔ مسلمانان به اُووائی : اے د الله رسوله ! دا (آخری) صورت زمونږ د

سینو او زړونو دپاره ډیر اطمینان او شفاء والا دے۔ نو د هغه ورځے نه به ته ډیر خوږونکے، ډیر سکونکے (او) غټ او اوږد یهودی اُووینے چه د هیبت په وجه به د هغه لاس توره نشی پورته کولے نو بس مسلمانان به (د غر نه) راکوز شی او په هغوی باندے به مسلط شی۔ او دجال چه کله (عیسی) ابن مریم اُووینی نو داسے به ویلی کیږی لکه څنګه چه قلعی ویلی کیږی تردے چه عیسی ﷺ به دجال ته راشی یا به هغه مونده کړی نو قتل به ئے کړی۔

[مصنف عبد الرزاق (٢٠٨٣٤) واسناده ثقات رجال الشیخین غیر الرجل الانصاری فانه لم یسم ویحتمل ان یکون صحابیاً) لان الثقفی تابعی روی عن ابی موسی الاشعری وغیره) فان کان کذلك فالسند صحیح) انظر قصة المسیح الدجال ص (٩٢) للشیخ الالبانی)

۵ – په اوږد حدیث د حذیفه بن الیمان ﷺ کښ راغلی دی چه هغے کښ ابتداء کښ د دجال راتلل ذکر دی، بعض حصه ئے دا ده : دجال به په آخر کښ د اُردن په یوه علاقه (اَفِیق) نومے کنډو کښ راښکاره شی، نو په هغه وخت کښ چه څوك په الله او په ورځ د آخرت ایمان لری نو د اُردن په علاقه کښ به وی، (د مسلمانانو او د دجال د لښکر په مابین کښ به جنګ کیږی چه په هغے کښ به) هغه یوه حصه مسلمانان قتل کړی، او یوے حصے ته به شکست ورکړی او یوه حصه به باقی پریدی نو په دوی باندے به شپه شی نو بعض مؤمنان به بعضو ته اُووائی چه تاسو د خپل رب د خوشحالولو دپاره د خپلو (شهیدانو) وروڼو سره په ملاویدو

(شهید کیدو) کښ د څه شی انتظار کوئ؟، چا سره چه د خوراك څه شے زیاتی وی هغه دِے خپل (مسلمان) ورور ته ورکړی۔ او کله چه صبا راوخیژی نو (د عام معمول په نسبت) مونځ په جلتئ سره اُوکړئ، بیا د دشمن مقابلے دپاره روان شئ۔

نو کله چه دا خلق مونځ دپاره اُودریږی نو عیسیٰ علیه السلام به راکوز شی او د دوی سره به مونځ اُوکړی، د مانځه نه چه فارغ شی نو هغه به د (لاس) په اشاره سره داسے اُووائی : [اَفْرِجُوا بَیْنِیْ وَبَیْنَ عَدُوِّ اللّٰهِ] زما او د الله د دشمن (دجال) د مینځ نه جدا شئ (دے دپاره چه هغه ما اُووینی) ابوحازمؒ (چه ددے حدیث د راویانو نه یو راوی دے) وائی چه ابو هریره رضی الله عنه اُوفرمایل : دجال به (د عیسیٰ علیه السلام په لیدلو) داسے ویلی کیږی لکه څنګه چه وازده په نمر کښ ویلی کیږی۔ او عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما دا اُوفرمایل : چه (داسے به ویلی کیږی) لکه څنګه چه مالګه ویلی کیږی او الله به په دجال او د هغه په لښکر باندے مسلمانان مسلط کړی نو هغوی به ئے تول قتل کړی (یعنی په یو ځل به پرے حمله اُوکړی او تول به ختم کړی) تردے چه ونه او کانړے به آواز کوی چه اے د الله بنده ! اے د رحمٰن بنده ! اے مسلمانه ! دا یهودے (زما شاته دے، راشه) دا قتل کړه۔ نو الله به دوی لره ختم کړی او مسلمانان به فتح اُومومی نو مسلمانان به صلیب مات کړی او خنزیر به قتل کړی او جزیه به بنده کړی۔ نو بیا به یأجوج ماجوج راوباسی الی آخر الحدیث۔

[اخرجه ابن منده (۲/۹۵) والمستدرك للحاكم (۵۳۶/۴) رقم (۸۵۰۷)]

وقال صحیح علی شرط مسلم واقره الذهبی وقال الالبانی فیه خلف بن خلیفة الاشجعی وهو صدوق من رجال مسلم فحدیثه جید فی الشواهد] [قصة المسیح الدجال ص [۰۵]

## ٤- د عیسیٰ ؑ به څه مشن وی ؟

یعنی عیسیٰ ؑ به د کوم کارونو دپاره تشریف راوړی ؟۔

دا یو واضح حقیقت دے چه عیسیٰ ؑ به د یو حاکم او مبلغ او مجاهد په صفت باندے دنیا ته تشریف راوړی او هغه به د یو پیغمبر په حیثیت سره نهٔ راځی ځکه چه د محمد مصطفیٰ، رسول مجتبیٰ ﷺ فرمائیلی دی چه زما نه روستو به هیڅ نبی نهٔ راځی۔ دا د ټولو مسلمانانو اتفاقی عقیده ده۔

ابو هریره رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمائیلی دی :

[وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ لَیُوْشِكَنَّ اَنْ یَّنْزِلَ فِیْكُمُ ابْنُ مَرْیَمَ حَكَمًا عَدْلاً فَیَكْسِرُ الصَّلِیْبَ وَیَقْتُلُ الْخِنْزِیْرَ وَیَضَعُ الْجِزْیَةَ وَیُفِیْضُ الْمَالَ حَتّٰی لَایَقْبَلَهٗ اَحَدٌ حَتّٰی تَكُوْنَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَیْرًا مِنَ الدُّنْیَا وَمَا فِیْهَا ثُمَّ یَقُوْلُ اَبُوْهُرَیْرَةَ : وَاقْرَأُوْا اِنْ شِئْتُمْ ﴿ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اِلَّا لَیُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ وَیَوْمَ الْقِیٰمَةِ یَكُوْنُ عَلَیْهِمْ شَهِیْدًا ﴾].

[بخاری رقم (۳٤٤۸) (مسلم (۹۳/۱) (٤۰٦) وغیره]

(قسم په هغه الله چه زما نفس د هغه په لاس کښې دے، خامخا نزدے ده چه په تاسو کښې عیسی ابن مریم راکوز شی چه عادل حکمران به وی نو صلیب به مات کړی او خنزیر به قتل کړی او جزیه به پورته کړی او مال به دومره روان کړی (یعنی فراخی به

راشي) چه هيڅوك به ئے نۀ قبلوى تردے چه يوه سجده به د دنيا او ما فيها نه غوره وى بيا ابو هريره اُوفرمايل : كه تاسو غواړئ دا آيت اُولولئ : (او نشته څوك د اهل كتابو نه مگر ضرور به د هغه د مرگ نه مخكښ په عيسى ؈ باندے ايمان راوړى او په ورځ د قيامت به هغه په دوى باندے گواه وى)۔

او په يو بل حديث د ابو هريره كښ رسول الله ﷺ فرمائيلى دى :

[يُوْشِكُ الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ اَنْ يَّنْزِلَ حَكَمًا قِسْطًا وَاِمَامًا عَدْلاً فَيَقْتُلُ الْخِنْزِيْرَ وَيَكْسِرُ الصَّلِيْبَ وَتَكُوْنُ الدَّعْوَةُ وَاحِدَةً]

[احمد ۲۹٤/۲) رقم (۹۱۱۰) الحديث صحيح وهذا اسناد حسن شعيب الارناووط) وقال الالبانى فى سنده كثير بن زيد وهو صدوق يخطئ (تقريب) ولكنه حسن الحديث فى الشواهد ثم ذكر الشواهد (الضعيفة ۱۲٤/۱۲) رقم (٥٥٦٤)

(نزدے ده چه عيسى ابن مريم به راكوز شى چه هغه به يو منصف (انصافدار) حكمران وى او عادل امام (بادشاه) به وى، نو خنزير به قتل كړى او صليب به مات كړى او جزيه به ختمه كړى، او ټول دعوت به صرف الله تعالىٰ طرفته كيږى (يعنى شرك او اختلافات به ختم شى)۔

**تبصره :** د انصاف دار حكمران نه معلومه شوه چه د عيسىٰ ؈ مشن به دا وى چه اسلام په ټوله دنيا باندے حاكم او قائم شى، او د خنزير د هلاكولو او د صليب د ماتولو مطلب دا دے چه كوم خلق د صليب عبادت كوى (يعنى عيسايان) نو دوى به د صليب عبادت پريدى او څوك چه خنزيران خورى نو هغوى به ددے خوراك پريدى۔ او پدے كښ يوه باريكه اشاره ده او هغه دا چه د

یهودیانو په سازش سره چه د عیسیٰ علیه السلام په دین کښې کوم دوه بے اصله څیزونه داخل شویدی نو په هغې کښې د عقائدو نه یوه عقیده د صلیب نه ښکاره کیږی او په اعمالو کښې بد عمل د خنزیر خوراك دے۔ نو عیسی علیه السلام به موجوده تحریف شوے عیسائیت منسوخ کوی او د هغوی د خود ساخته دین علامه (صلیب) به ماتوی او د خنزیرانو په خوړلو به پابندی لګوی چه دا به ددے خبرے علامه او نښه وی چه په دنیا کښې به اُوس حکمران صرف اسلامی احکام وی او عیسایانو ته به دا ښکاره کوی چه تاسو ما ته په عقیدو کښې او په اعمالو کښې بد بد نسبتونه کړی چه زه ددے نه بری یم او عیسایانو ته به د اسلام حقانیت او د نصرانیت او یهودیت بطلان ښکاره کوی، دا په دوی باندے د خپل کور نه حجت دے چه اے نصرانیت والو! ستاسو مشر ستاسو نه بیزاره دے او ستاسو په عقائدو او اعمالو باندے پابندی لګوی، دا د عیسائیت یوه عجیبه رسوائی او شرمناك حالت دے!!۔

او پدے کښې د مسلمانانو اهل حقو دپاره پوره تسلی او خوشحالی ده او د هغوی د زړه یخوالے دے۔ او دا کار به ضرور کیږی۔ ان شاء الله تعالیٰ۔

پدے حدیث کښې دا خبره هم راغله چه عیسیٰ علیه السلام به جزیه (ټیکس) ختموی ـ که مونږ په دنیا باندے نظر واچوو نو هر ملك په رعیت باندے ټیکس ایخودے دے، برابره ده که هغه مسلمان ملك دے او که غیر مسلم۔ او اصل کښې مغرب او یورپ والو

مسلمان ممالك د ورلډ بینك او آئی ایم ایف په ذریعه مجبوره کوی چه دا تیکس نافذ کړی۔ ځکه چه دا د یو عالمی حکومت حصه ده۔ او د الجساسه یوه طریقه ده (چه ددے تشریح به روستو راشی ان شاء الله تعالیٰ) چه ددے په ذریعه د هر فرد جاسوسی (د هغه د کوائفو نه خبرداری) ممکن ده، د ټولے زمکے اُوسیدونکو د هر شخص د کوائف نه خبریدل د تیکس د نظام په وساطت باندے ممکن دی۔ دا ټول کارونه د عیسیٰ ﷺ د مشن خلاف دی۔ پدے وجه عیسیٰ ﷺ به د تیکسی نظام خلاف وی او هغه به ختموی، او د مسلمانانو نه به تیکسونه ختموی ځکه چه د تیکس نظام دجالی نظام دے۔ که مونږ سوچ اُوکړو په هر کور په هر بیل کښ په هر کاروبار باندے څو څو قسمه تیکسونه عائد شویدی دا ټول طاغوتی کارنامے دی، په مسلمان باندے سویٰ د عشر او زکاة نه نور تیکسونه او سودونه نافذ کول نشته۔

او د حدیث نه دا هم معلومه شوه چه عیسیٰ ﷺ له به الله تعالیٰ داسے غلبه ورکړی چه ټول کفری طاقتونه او دعوتونه به ختم شی او برسرعام دعوت به صرف د اسلام پاتے شی، ځکه دا یواځے حق دے او حق به پاتے وی۔ او ددے غلبه به په ټول عالَم باندے ښکاره کیږی۔ الله تعالیٰ دے اُوکړی چه دا حالت مونږ په خپلو سترګو اُووینو آمین۔

## ۵- د عیسی علیه السلام د راکوزیدو خاص وخت :

عیسیٰ علیه السلام به په داسې سخت وخت کښې نازلیږي چه په مسلمانانو به د دجال او د هغه د فوج د طرف نه ډیر تکلیف وي نو الله تعالیٰ به عیسیٰ علیه السلام د دجال د ختمولو او د هغه د فوجونو د شکست ورکولو دپاره راکوز کړي۔

حدیث د ابن ماجه کښې بسند صحیح راځي : عیسی ابن مریم علیه السلام به خاص په هغه وخت کښې راکوزیږي چه کله دجال یو ځوان هلك وژلې وي او خلقو ته د هغه بیرته راژوندي کول ښائي۔ او ددې حکمت دا دې چه د ژوند او د مرګ اختیار یوه داسې خبره ده چه خلقو په ژوند کښې نۀ ده لیدلې نو دجالي ډلې به خلقو ته دا وئیلي وي چه دجال د هغوی إلٰـه او رب دې، نو ډیر خلق به د هغه تابع شي او د هغه مذهب به قبول کړي۔ په نورو الفاظو سائنسي ترقي به په خپل عروج باندې وي۔

بل طرف ته عیسی علیه السلام د نبي په حیثیت سره او د الله په حکم سره دا معجزه (د مړو ژوندي کول) خودلي دي۔ نو هغه به دا معجزه دوباره خودلې شي۔ دا به یوه معجزاتي مقابله وي چه د سائنسي قوتونو سره به راځي او معجزاتي قوتونه همیشه فتح مومي نو پدې طریقه به الله تعالیٰ مؤمنان او د دجال د الوهیت او ربوبیت منلو د ګمراهئ نه محفوظ ساتي۔

## ٦- خوشحاله دور:

سیدنا ابو هریره ﷺ فرمائی :رسول الله ﷺ فرمائیلی دی : [يَنْزِلُ
نُ مَرْيَمَ إِمَامًا عَادِلاً وَحَكَمًا مُقْسِطًا فَيَكْسِرُ الصَّلِيبَ وَيَقْتُلُ الْخِنْزِيرَ وَيَرْجِعُ
سَّلَمُ وَيُتَّخَذُ السُّيُوفُ مَنَاجِلَ وَتَذْهَبُ حُمَةُ كُلِّ ذَاتِ حُمَةٍ وَتُنْزِلُ السَّمَاءُ
رِزْقَهَا وَتُخْرِجُ الْاَرْضُ بَرَكَتَهَا حَتّٰى يَلْعَبَ الصَّبِيُّ بِالثُّعْبَانِ فَلَا يَضُرُّهُ وَيُرَاعِي
غَنَمُ الذِّئْبَ فَلَا يَضُرُّهَا وَيُرَاعِي الْاَسَدُ الْبَقَرَ فَلَا يَضُرُّهَا]

[احمد (۲۸۳،۳۸۲/۲) بخاری (۲٤٧٦)]

(عیسیٰ ﷺ بـه حاکم او عادل راکوزیږی، نو صلیب به ماتوی او
خنزیر بـه قتـلوی، او صـلح به راواپس کوی او تورونه به لورونه
جوړ شـی، او د هر زهریله شی زهر به ختم شی، او آسمان به خپل
رزقـونـه رانـازل کړی، او زمکه به خپل برکتونه راوباسی تردے چه
ماشوم بچے به د مار سره لوبے کوی لیکن هغه به ضرر نهٔ ورکوی،
او گډے بیـزے بـه د شـرمـخ سـره څـرېـږی لیکن هیڅ ضرر بـه نـهٔ
ورکـوی او زمرے بـه د غـواگـانـو سـره څـرېـږی لیکن ضرر بـه نـهٔ
ورکوی)۔

عـلامـه سـنـدیؒ لیـکـی : ((د تـورو نـه به لورونه جوړ شی)) ددے
مطلب دا دے چه خلق به جهاد پریدی او د خپلو وسلو نه به سامان
فـصل او کروندے جوړ کړی آه۔ ځکه چه الله تعالیٰ به مسلمانانو
ته په تولو کافرانو فتح ورکړی وی۔

په حـدیـث د نـواس بن سمعان ﷺ کـښ دی چـه رسول الله ﷺ

اُوفرمایل : [ثُمَّ يُرْسِلُ اللّٰهُ مَطَرًا لَا يَكِنُّ مِنْهُ بَيْتُ مَدَرٍ وَلَاوَبَرٍ فَيَغْسِلُ الْاَرْ
حَتّٰى يَتْرُكَهَا كَالزَّلَفَةِ ثُمَّ يُقَالُ لِلْاَرْضِ اَنْبِتِي ثَمَرَتَكِ وَرُدِّىْ بَرَكَتَكِ فَيَوْمَئِذٍ تَأْكُلُ
الْعِصَابَةُ مِنَ الرُّمَّانَةِ وَيَسْتَظِلُّوْنَ بِقِحْفِهَا وَيُبَارَكُ فِى الرِّسْلِ حَتّٰى اِنَّ اللِّقْحَةَ مِنَ
الْاِبِلِ لَتَكْفِى الْفِئَامَ مِنَ النَّاسِ وَاللِّقْحَةَ مِنَ الْبَقَرِ لَتَكْفِى الْقَبِيْلَةَ مِنَ النَّاسِ وَاللِّقْحَ
مِنَ الْغَنَمِ لَتَكْفِى الْفَخِذَ مِنَ النَّاسِ]

[مسلم کتاب الفتن باب ذکر الدجال (۲۹۳۷)

بیا به الله تعالیٰ باران رانازل کړی چه هر ختے او خیمو والا کور ت
بـه اُورسیـږی او د هغې په ذریعه به الله تعالیٰ زمکه داسې پاکه کړ
لـکـه څنګه چه حوض یا باغ (یا ښائسته ښځه) وی بیا به زمکې ت
حـکـم اُوکـړے شـی چه خپلې میوے رازرغونے کړه او خپل برکا
راواپس کړه نو په دغه ورځ به یو انار پوره جماعت خوړلے شی او
هغې د پوستکی نه به سورے حاصلوی، او په پیو کښ به داس
برکت واچولے شی چه د یو پیو ورکونکے اُوښے پئ به د ډیرو ډل
کافی کیږی، او د یو پیو ورکونکے غوا پئ به د یوے قبیلے کاف
کیږی او د یو پئ ورکونکے بیزے پئ به د یو خاندان کافی کیږی۔

**تبصره** : دا باران به په هغه وخت نازلیږی چه کله د یأجو
مأجوج د هلاکت په وجه په زمکه کښ بد بوئی زیاته شوی و
نو عیسیٰ علیه السلام به دعاء اُوکړی چه اے الله ! دا بد بوئی ختمه کړه
د باران په ذریعه به توله زمکه صفا شی۔

○ د عیسیٰ علیه السلام د دور برکات په یو اُوږد حدیث کښ داسې
راغلی دی چه هغه به روستو په قصه د دجال کښ بیان ش

مینځنۍ حصه ئې داسې ده: عیسی علیه السلام به راکوز شي چه عادل حکمران به وي او انصاف دار امام به وي، صلیب به مات کړي او خنزیر به ذبح کړي او جزیه به د خلقو نه کیږدي او زکاتونه اخستل به پریدی۔ نو نهٔ به د ګډو بیزو پسې څوك لیږي او نهٔ د اُوښ پسې۔
[وَتَرْفَعُ الشَّحْنَاءُ وَالتَّبَاغُضُ وَتُنْزَعُ حُمَةُ كُلِّ ذَاتِ حُمَةٍ حَتّٰى يَدْخُلَ الْوَلِيْدُ يَدَهٗ فِي الْحَيَّةِ فَلَا تَضُرُّهٗ وَتَضُرُّ الْوَلِيْدَةُ الْاَسَدَ فَلَا يَضُرُّهَا وَيَكُوْنُ الذِّئْبُ فِي الْغَنَمِ كَاَنَّهٗ كَلْبُهَا وَتَمْلَأُ الْاَرْضُ مِنَ السِّلْمِ كَمَا يُمْلَأُ الْإِنَاءُ مِنَ الْمَاءِ وَتَكُوْنُ الْكَلِمَةُ وَاحِدَةً فَلَا يُعْبَدُ إِلَّا اللهُ وَتَضَعُ الْحَرْبُ اَوْزَارَهَا وَتُسْلَبُ قُرَيْشٌ مُلْكَهَا وَتَكُوْنُ الْاَرْضُ كَفَاثُوْرِ الْفِضَّةِ تُنْبِتُ نَبَاتَهَا بِعَهْدِ آدَمَ حَتّٰى يَجْتَمِعَ النَّفَرُ عَلَى الْقِطْفِ مِنَ الْعِنَبِ فَيُشْبِعُهُمْ، يَجْتَمِعُ النَّفَرُ عَلَى الرُّمَّانَةِ فَتُشْبِعُهُمْ وَيَكُوْنُ الثَّوْرُ بِكَذَا وَكَذَا مِنَ الْمَالِ وَيَكُوْنُ الْفَرَسُ بِالدُّرَيْهِمَاتِ إِلٰى آخِرِ الْحَدِيْثِ الخ]

[صحيح الجامع الصغير رقم: ۷۸۷۵) بسند صحيح]

(او بغض او حسد او دشمني به د خلقو نه پورته کړے شي او د هر زهریله حیوان نه به زهر اُوویستلے شي تردے چه ماشوم به خپل لاس په مار کښې داخلوی لیکن هغه به ورته ضرر نهٔ ورکوی او ماشومه جینۍ به زمري ته ضرر ورکوی لیکن زمرے به هغې ته هیڅ نهٔ وائی۔ او شرمخ به په ګډو بیزو کښې داسے وی لکه ګویا کښې د هغې (ساتونکے) سپے دے۔ او زمکه به د صلحې (یا اسلام) نه داسې ډکه شي لکه څنګه چه لوښے د اُوبو نه ډکولے شي۔ او کلمه (دین) به یو شي۔ نو عبادت به صرف د الله تعالیٰ کولے شي او جنګ به خپل سامان کیږدی (یعنی جنګ به ختم شي) او قریش

به خپله بادشاهي راکاږي او زمکه به د سپينو زرو د دسترخوان په شان شي، داسې ګیاه ګانې به رازرغون کوي لکه څنګه ئې چه په زمانه د آدم ﷺ کښې رازرغون کولې تردې چه ډیر کسان به په یو غونچك انګور باندې راجمع کیږي نو هغه به ئې مړوي او څه کسان به په یو انار دانه راجمع کیږي نو هغه به ئې مړوي او یو غوائي به په دومره دومره مال ملاویږي (یعنی ګران به وي ځکه چه خلق به کروندې زیاتې کوي) او اس به په یو څو روپو وي. په یو بل روایت کښې راغلي دي چه اس به په شلویښت روپۍ ملاویږي. (ځکه چه جهادونه به ختم شي، د خلقو به په کار نهٔ راځي).

## ۷- د عیسی ﷺ په زمکه کې د پاتې کیدو موده :

عیسیٰ ﷺ به په دنیا کښې څو مره وخت دپاره ایساریږي ؟ نو دې باره کښې احادیث بیا تبصره اُوګوره : ـ

سیدنا عبد الله بن عمر رضی الله عنهما وائي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : [فَيَبْعَثُ اللهُ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ كَأَنَّهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ فَيَطْلُبُهُ فَيُهْلِكُهُ ثُمَّ يَمْكُثُ النَّاسُ سَبْعَ سِنِيْنَ لَيْسَ بَيْنَ اثْنَيْنِ عَدَاوَةٌ] [مسلم كتاب الفتن، باب في خروج الدجال: ۲۹٤۰]

(پس الله تعالیٰ به عیسی ﷺ راولیږي دا به داسې شکل والا وي لکه د عروه بن مسعود (ثقفي) نو دجال به تالاش کړي او هلاك به ئې کړي بیا به خلق اُوه کاله داسې حالت کښې تیر کړي چه د دوه کسانو ترمینځ به هیڅ قسم دشمني نهٔ وي).

○ - ابو هریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل :
[فَيَمْكُثُ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ثُمَّ يُتَوَفّٰى وَيُصَلِّيْ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ]

[ابوداود کتاب الملاحم، باب خروج الدجال (٤٣٢٤) السلسلة الصحيحة (٢١٨٢)

(عیسی علیه السلام به څلویښت کاله دنیا کښې تیر کړی بیا به وفات شی، او مسلمانان به په هغه باندې مونځ د جنازې اُوکړی)

**تبصره** : ددې دواړو روایتونو ظاهر کښې تعارض ښکاره کیږی د اول روایت نه معلومه شوه چه عیسی علیه السلام به د خلقو سره اُوه کاله تیروی او د دویم روایت نه ثابته شوه چه څلویښت کاله به تیروی۔ او دواړه صحیح حدیثونه دی ؟ نو ددې په تطبیق کښې حافظ ابن کثیرؒ داسې وئیلی دی چه عیسی علیه السلام به د پیدائش نه تر مرګه پورې څلویښت کاله په زمکه اُوسیږی چه د هغې نه (۳۳) درې دیرش کاله عمر ده د آسمان د ختلو نه مخکښې تیر کړیدې او باقی اُووه کاله عمر به د قیامت نه مخکښې د نازلیدو نه بعد پوره کوی۔ والله اعلم۔

[النهاية في الفتن والملاحم لابن كثير ١/١٧٧) فتاوى واحكام فى نبى الله عيسى ص (٤٤) لعبد الله الجبرين]

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل : چه عیسی علیه السلام به په دنیا کښې (د نازلیدو نه یویشت کاله بعد) نکاح کوی او (د نکاح نه بعد به) په دنیا کښې (۱۹) کاله اُوسیږی (نو پدې طریقه په دنیا کښې ئې ټوله موده عمر څلویښت

کاله جوړیږي لکه چه مخکښ صحیح احادیث ذکر شو)۔

[فتح الباری بحواله نعیم بن حماد فی الفتن، وعون المعبود]۔

## ۸- عیسی ؑ به حج هم کوي :

ابو هریره ؓ وائي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : [وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَيُهِلَّنَّ ابْنُ مَرْيَمَ بِفَجِّ الرَّوْحَاءِ حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا أَوْ لَيَثْنِيَنَّهُمَا]

[مسلم کتاب الحج باب اهلال النبی وهدیه : ۱۲۵۲]

(قسم په هغه الله چه زما نفس د هغه په لاس کښ دے چه خامخا به عیسی ؑ د روحاء کنډو نه د حج یا عمرے یا دواړو (حج قرآن) دپاره لبیك وائي)۔

ددے نه معلومه شوه چه د عیسی ؑ د دور حکومت به داسے امن والا وي چه هغه به حج او عمرے ته د روحاء په لاره باندے تیریږي او بیت الله ته به حاضري ورکوي۔ دا به هغه دور وي چه د کافرانو سره به جنګونه ختم شوي وي۔

## ۹- د عیسی ؑ د راکوزیدو ځائے :

عیسی ؑ به کوم ځائے راکوزیږي؟۔

د اَوس بن اوس الثقفي ؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [يَنْزِلُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ شَرْقِيَّ دِمَشْقَ عَلَيْهِ مُمَصَّرَتَانِ كَأَنَّ رَأْسَهٗ يَقْطُرُ مِنْهُ الْجُمَانُ] [فضائل الشام ودمشق بسند صحیح للالبانی ص (۲٦)

(عیسی ابن مریم ؑ به د سپینے منارے خوا کښ د دمشق

مشرقی جانب کښې راکوزیږی پداسې حال کښې چه په هغه باندې به دوه جامې وی چه معمولے زیړ والے به پکښې وی ګویا کښې داسې به وی لکه چه د سر نه ئے ملغلرے څاخی)۔

په اوږد حدیث د نواس بن سمعان کښې راغلی دی : [إِذْ بَعَثَ اللّٰهُ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ فَيَنْزِلُ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ شَرْقِيَّ دِمَشْقَ بَيْنَ مَهْرُوْدَتَيْنِ وَاضِعًا كَفَّيْهِ عَلٰى أَجْنِحَةِ مَلَكَيْنِ، إِذَا طَأْطَأَ رَأْسَهُ قَطَرَ وَإِذَا رَفَعَهُ تَحَدَّرَ مِنْهُ جُمَانٌ كَاللُّؤْلُؤِ فَلَا يَحِلُّ لِكَافِرٍ يَجِدُ رِيْحَ نَفَسِهٖ إِلَّا مَاتَ وَنَفَسُهُ يَنْتَهِيْ حَيْثُ يَنْتَهِيْ طَرْفُهُ الخ (احمد، مسلم وابوداود وابن ماجه)

(یعنی کله چه دجال یو څوان دوه ټکرے کړی او بیرته ئے راژوندے کوی نو پدے مابین کښې به الله تعالیٰ ناڅاپی عیسی علیه السلام راکوز کړی نو دا به د سپینے منارے خوا ته د دمشق مشرقی طرفته په دوه جامو کښې راکوز شی چه زیړ بخنے به وی، دواړه لاسونه به ئے د دوه ملائکو په وزرو باندے ایخودے وی، کله چه سر ښکته کړی نو د سر نه به ئے اوبه څاخی او کله چه سر پورته کړی نو د سر نه به ئے د ملغلرو په شان خولے څاخی نو هیڅ کافر له حلال نهٔ دی چه هغه د عیسی علیه السلام ساه محسوس کړی مګر مړ کیږی به او د عیسی علیه السلام ساه به هغه ځائے ته رسی کوم ځائے ته ئے چه نظر رسی۔

د یو بل روایت نه معلومیږی چه د عیسی علیه السلام ساه به د هغوی قلعه ګانو او کلو ته رسی۔ او عیسیٰ علیه السلام باندے به سکینه او آرام وی او زمکه به هغه ته راتاؤ شی

(ابن عساکر ۱/۲۲٦)

○ - کعب الاحبار رحمه الله فرمائی : چه مسیح علیه السلام به د دمشق مشرقی دروازه باندے د سپین پل سره داسے راکوزیږی چه هغه به یوے وریځے پورته کړے وی او خپل دواړه لاسونه به ئے د دوه ملائکو په اُوګو باندے ایخودے وی، د هغه په بدن به دوه نرمے کپړے وی، چه د هغے نه به ئے د یو نه لنګ تړلے وی او دویم به ئے د څادر په طور څان نه تاؤ کړے وی، کله چه سر خکته کړی نو د هغه نه به د چاندئ په شان ملغلرے (د سپینو اُوبو په شان قطرے) څاڅی۔ (تاریخ دمشق لابن عساکر ۱/۲۱۸)

## ۱۰- د عیسی علیه السلام وفات :

عیسی علیه السلام چه کله خپله زندګی دنیا کښې پوره کړی نو بیا به وفات شی او مسلمانان به په هغه باندے مونځ اُوکړی۔

عبد الله بن سلام رضی الله عنه فرمائی : په تورات کښې د رسول الله ﷺ صفات لیکلی شوی دی او دا چه عیسی ابن مریم به د هغه سره یو ځائے دفن کیږی۔ ترمذی کښې دی : ابو مودود المدنی وائی چه په کوټه (د عائشه کښې) د یو قبر په اندازه ځائے باقی پاتے دے۔

[ترمذی وقال حدیث حسن وضعفه الالبانی]۔

امام حافظ ابو القاسم ابن عساکرؒ فرمائی : [يُتَوَفّٰى بِطِيبَةَ فَيُصَلّٰى عَلَيْهِ هُنَالِكَ وَيُدْفَنُ بِالْحُجْرَةِ النَّبَوِيَّةِ] [عون المعبود (۹/۱٦۱٤)]

(په مدینه طیبه کښ به عیسی علیه السلام وفات کیږی او بیا به پرے هلته مونځ کیدے شي او په حجره د رسول الله ﷺ کښ به دفن کولے شي)۔

لهذا د احادیثو نه دا معلومه ده چه عیسی علیه السلام به په مدینه کښ د عائشے رضی الله عنها په کوټه کښ د رسول الله ﷺ او د هغه د ملګرو ابوبکر او عمر په خوا کښ دفن کیږی۔

## ۱۱- د عیسی علیه السلام نه روستو به څه کیږی ؟

د عیسی علیه السلام د وفات نه روستو به په مسلمانانو باندے او په دے دنیا باندے به څه تیریږی ؟

د احادیثو نه دا خبره معلومه ده چه کله عیسی علیه السلام وفات شی نو د خلقو د سینو او د مصاحفو نه به قرآن پاك پورته کړے شی، چه هیچا ته به هیڅ حرف د قرآن نهٔ وی یاد۔ او بیا به یو شخص راولیږلے شی چه هغه به کعبه ورانه کړی او بیا به قیامت قائمیږی۔ (قرطبیؒ)۔

او بعض اهل علم فرمائی چه د عیسی علیه السلام د مرګ نه پس به خلقو کښ تغیر پیدا شی او داسے خلق به پاتے شی چه په هغوی کښ به هیڅ خیر پاتے نشی او د هغه د مرګ پسے سمدست به دابة الارض راوځی۔ چه مؤمن او کافر به بیلوی او بیا به د شام د طرف نه یوه یخه هواء راشی نو په مخ د زمکه به هیڅوك پاتے نشی چا کښ چه په اندازه د ذرے ایمان وی مګر هغه به وفات کړی نو بیا به

شریان خلق پاتے شی او په هغوی به قیامت قائمیږی۔

بعض اهل علم وائی چه د عیسی علیه السلام د وفات نه پس به یو سل شل کاله بعد قیامت قائمیږی۔ او دا کلونه به ډیر زر تیریږی ددے وجه نه په بعض روایاتو کښې دا راغلی دی چه د عیسی علیه السلام پسے به سمدست قیامت وی۔

نو یو سل شل کاله به داسے زر زر تیر شی چه کال به د میاشتے برابر وی او میاشت به د هفتے او هفته به د یوے ورځے برابر وی او ورځ به د یوے گینټے برابر وی۔ او په اوقاتو کښې د سختے بے برکتئ پیشنگوئی خو په مرفوع روایت کښې د ابو هریره نه صراحةً راغلے ده۔ چه قیامت به نهٔ قائمیږی تردے چه کال به په شان د میاشتے شی۔

او د عبد الله بن عمرو نه موقوفاً نقل دی چه د نمر د مغرب د طرف نه راختلو نه روستو به خلق په دنیا کښې یو سل شل کالو پورے ژوندی وی بیا به قیامت راځی۔

[عبد بن حمید فی تفسیره ونقله الحافظ فی فتح الباری (۱۱/۳۵٤) والمناوی فی فیض القدیر (۳/۱۰۵) وقالا : سنده جید]

دا روایت موقوف بمنزلة المرفوع دے ځکه چه صحابی د ځان نه د قیامت د حالاتو تعیین نشی کولے او پدے باره کښې مرفوع حدیث هم شته لیکن هغه ضعیف دے۔ هغه داسے دے : [يَبْقَى النَّاسُ بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا عِشْرِيْنَ وَمِائَةَ سَنَةٍ] [خَرَّجَهُ الْبَالِسِيُّ عن عبد بن حميد] ۔(د مغرب د طرف نه د نمر ختلو نه روستو به خلق یو

سل شلو کالو پورے باقی پاتے وی)

بیا دلته دا سوال نهٔ پیدا کیږی چه د قیامت علم خو الله تعالیٰ د بندګانو نه پټ ساتلے دے او په دغه روایت کښ خو تعیین اُوکړے شو؟ جواب دا دے چه د لوئی علاماتو نه مخکښ د قیامت تعیین نشی کیدے مګر کله چه دغه شان لوئی علامات ښکاره شی نو بیا د قیامت تعیین کول د آیت خلاف نهٔ دی۔

OOOOOOOOOO

# دریم بحث : دجال او د هغه فتنې :

## ۱ - د دجال نوم او د هغې معنیٰ :

دجال په عربی ژبه کښې د (دَجْل) نه مشتق دے، چه دا د دَجَلَ يَدْجُلُ (بروزن نَصَرَ) مصدر دے او ددے معنیٰ ده، دروغ وئیل، دهوکه ورکول، مکر او فریب کول او ګډوډوالے کول۔ نو دجال په وزن د فعّال دے، د مبالغې صیغه ده په معنیٰ د هغه شخص چه ډیر دروغ ویونکے او ډیر دهوکه ورکونکے وی۔

ابن الاثیر رحمه الله د یو حدیث په تشریح کښې د دجال معنیٰ کوی حدیث داسے دے : [يَكُوْنُ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ دَجَّالُوْنَ] (په آخره زمانه کښې به دجالان پیدا شی) هغه فرمائی : [اَیْ كَذَّابُوْنَ مُمَوِّهُوْنَ] (یعنی د دجالون نه مراد دروغجن او خلاف واقع خبره کونکی خلق دی۔ بیا وائی :

[وَاَصْلُ الدَّجْلِ الْخَلْطِ] (دَجْل په اصل کښې خلط ملط او ګډوډوالی ته وئیلے شی)۔ [النهاية لابن الاثير :۳٤٦/۲]

صاحب د المعجم الوسیط داسے معنیٰ کوی : [اَلْكَذَّابُ، الْمُمَوِّهُ الْمُدَّعِيْ] (ص : ۲۷۲)

(ډیر دروغ ویونکے او خلافِ حقیقت خبرے دعوه کونکے)۔

علامه ابن منظورؒ لیکی : [وَالدَّجَّالُ هُوَ الْمَسِيْحُ الْكَذَّابُ وَاِنَّمَا دَجْلُهٗ سِحْرُهٗ وَكِذْبُهٗ ...... وَالْمَسِيْحُ الدَّجَّالُ رَجُلٌ مِنْ يَهُوْدَ يَخْرُجُ فِيْ آخِرِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ

سُمِّیَ بِذٰلِكَ لِاَنَّهٗ یَدْخُلُ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ] [لسان العرب ۱۹/۵]

(دجال نه مراد دروغجن مسیح دے او د دجال دَجْل د هغه جادو او دروغ دی۔...... او مسیح الدجال د یهودو نه یو سړے دے چه ددے امت په آخر کښ به راښکاره کیږی۔ د هغه نوم دجال پدے وجه ایخودے شویدے چه هغه به حق او باطل یو بل سره گډوډ کوی)۔

د دجال جمع دَجَاجِلَة راځی۔

د یهودیانو دا عقیده ده چه زمونږ یو نجات راکونکو شخص به راوځی او هغوی د هغه نوم یَبُل، یُوبِل یا هُبَل یادوی چه دا په اسلامی اصطلاح کښ د طاغوت او بتانو نومونه دی۔ او د دجال لقب د دوی په نیز مسیحا یا مسیّا دے۔

د دجال نوم په احادیثو کښ نهٔ دے راغلے البته د دجال په لقب سره مشهور دے او بس په همدے لقب سره پیژندلے شی۔

دجال نوم دے د هر فتنے راپورته کونکی، دوکه باز، او گډوډی راوستونکی نو دجال به هم د خپل دروغ او جادو په ذریعه په خلقو باندے تلبیس او گډوډی راولی او د خپلو فتنو په ذریعه به خپل کفر او دعوه د اُلوهیت او ربوبیت خلقو ته د دهوکے او جادو په رنگ کښ پیش کوی او د الله بندگان به په شکونکو او شبهاتو کښ اچوی۔

دجال به په ظاهره کښ یو څه کوی او په مینځ کښ به بل څه وی لکه روستو د احادیثو نه به معلومه شی۔ دا د هغه دوکه ده، عمل به ئے د درغو او دهوکے نه ډك وی او خبره به ئے سوچه غلط بیانی

او دروغ وی۔

دجالی فتنے والا هم په ظاهره کښې یو شان نعرے وهی چه انسانی حقوق، اشتراکیت او جمهوریت او معاشی فلاح او خوشحالی لیکن دا صرف د خولے الفاظ دی په مینځ کښې د انسانیت دشمنی او هلاکت دے۔

## دجال اکبر ته مسیح ولے وائی ؟ :

ددے په باره کښې بعض اقوال او تحقیق مخکښې تیر شو بعض وجوهات دا دی : مسیح معنیٰ ده ډیر سیاحت کونکے او ګرځیدونکے شخص۔ نو دجال به هم د خپلو فتنو خورولو دپاره په ټوله دنیا کښې ګرځی۔

علامه ابن فارسؒ لیکی : چه مسیح هغه ته وائی چه د هغه د مخ دواړو حصو نه یوه حصه محوه او ورانه شوی وی، په هغے کښې نۀ سترګه وی او نه وروځے۔ او دجال به هم دغه شان وی لکه حدیث د حذیفه بن الیمان کښې راغلی دی :

[وَاِنَّ الدَّجَّالَ مَمْسُوْحُ الْعَيْنِ الْيُسْرىٰ، عَلَيْهَا ظَفَرَةٌ غَلِيْظَةٌ]

(د دجال ګسه سترګه ورانه (اخیړ) شویده چه په هغے باندے د نوك په شان سخته پولۍ وی)۔

## د دجال راتلل حق دی :

حذیفه بن اسید غفار ؓ فرمائی : [اِطَّلَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلَيْنَا وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ فَقَالَ : مَا تَذْكُرُوْنَ ؟ قَالُوْا نَذْكُرُ السَّاعَةَ، قَالَ : اِنَّهَا لَنْ تَقُوْمَ حَتّٰى تَرَوْا

قَبْلَهَا عَشَرَ آيَاتٍ فَذَكَرَ الدُّخَانَ وَالدَّجَّالَ وَالدَّابَّةَ وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَنُزُولَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ وَيَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ وَثَلَاثَةَ خُسُوفٍ خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ] [مسلم، كتاب الفتن، باب فى الآيات التى تكون قبل الساعة (۲۹۰۱)و الترمذی (۲۱۸۳) وابوداود (٤٣١١) وغيرهم)

(رسول الله ﷺ زمونږ خوا ته راغلو او مونږ خپل مینځ کښ خبرے اترے کولے ؟ وے فرمایل : څه خبرے کوئ ؟ خلقو اُووئیل : مونږ د قیامت په باره کښ خبرے کوو۔ وے فرمایل : بیشکه قیامت به هیچرے نهٔ قائمیږی تردے چه تاسو د هغے نه مخکښ لس نښے اُونه وینئ، بیا ئے هغهٔ بیان کړے (هغه نښے دا دی : ) لوګے، دجال، دابة الارض، د مغرب د طرف نه د نمر راختل، د عیسی علیه السلام راتلل، یاجوج ماجوج، درے ځایونو کښ (خلق) په زمکه داخلیدل، په مشرق، په مغرب او په جزیرة العرب کښ او ددے په آخر کښ به د یمن د طرف نه یو اُور راوځی چه خلق به د محشر میدان ته شړی)۔

**تبصره** : ددے نه معلومه شوه چه دجال د قیامت د لوئی لسو علاماتو نه یوه علامه ده او دا یو حقیقت لری لکه نبی ﷺ په بل روایت کښ فرمائیلی دی :

[وَهُوَ خَارِجٌ فِيكُمْ لَامَحَالَةَ إِنَّهُ لَحَقٌّ، وَأَمَا إِنَّهُ قَرِيبٌ فَكُلُّ مَا هُوَ آتٍ قَرِيبٌ]
[مسند بزار وانظر قصة المسيح الدجال للالبانی ص (۱۲۹)

(دجال به په تاسو کښ خامخا راوځی، یقیناً (د هغه راتلل) حق

دی۔د هغه راتلل نزدے دی او هر راتلونکے شے نزدے وی)۔

پدے حدیث کښ رسول الله ﷺ زمونږ او ستاسو ذهن برابروی او د دجال د عظیمے فتنے نه خپل امت یروی چه خبردار د دجال فتنه ډیره سخته ده او نزدے راروانه ځکه چه هر راتلونکے زمانه ډیره نزدے وی لهذا د هغه د فتنے نه د ځان خلاصولو دپاره تیارے کول پکار دی۔

## تمام انبیاء علیهم السلام
## خپل امتونه د دجال د راتلونه یرولی دی

د دجال فتنه ډیره سخته ده پدے وجه تولو انبیاء علیهم السلام خپل امتونه یرولی دی۔

۱– ابو امامه باهلی ؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ مونږ ته په یوه خطبه کښ اُوفرمایل :

[يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهَا لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ أَعْظَمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ وَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى لَمْ يَبْعَثْ نَبِيًّا إِلَّا حَذَّرَ أُمَّتَهُ وَأَنَا آخِرُ الْأَنْبِيَاءِ وَأَنْتُمْ آخِرُ الْأُمَمِ وَهُوَ خَارِجٌ فِيكُمْ لَامَحَالَةَ] [ابن ماجه، کتاب الفتن باب فتنة الدجال الخ رقم [٤٠٧٧]

(اے خلقو ! یقیناً په زمکه کښ د دجال د فتنے نه لویه فتنه بله نشته او یقیناً الله تعالیٰ چه هر پیغمبر رالیږلے دے نو هغه خپل قوم (د دجال د فتنے نه) یرولے دے، او زه آخر نبی یم او تاسو آخری امت یئ او هغه به خامخا په تاسو کښ راوځی)۔

۲– عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی :

[قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فِی النَّاسِ فَاَثْنٰی عَلَی اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ ذَکَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ : اِنِّیْ لَاُنْذِرُکُمُوْهُ وَمَا مِنْ نَبِیٍّ اِلَّا وَقَدْ اَنْذَرَهٗ قَوْمَهٗ وَلٰکِنِّیْ سَاَقُوْلُ لَکُمْ فِیْهِ قَوْلًا لَمْ یَقُلْهُ نَبِیٌّ لِقَوْمِهٖ اِنَّهٗ اَعْوَرُ وَاِنَّ اللّٰهَ لَیْسَ بِاَعْوَرَ]

[بخاری، کتاب الفتن باب ذکر الدجال رقم [۱۲۷]

(رسول الله په خلقو کښې راپاڅیدو او د الله تعالیٰ د هغه د شان مطابق صفات ئې بیان کړل، بیا ئې د دجال ذکر اُوکړو چه زه تاسو د هغه نه یروم او هیڅ نبی داسې نهٔ دې تیر شوې مګر هغه خپل قوم د هغه نه یرولې دې، لیکن زه تاسو ته د هغه په باره کښې یوه داسې خبره کوم چه یو نبی هم خپل قوم ته نهٔ ده کړې، (او هغه دا چه) دجال به کاڼړې وی او الله تعالیٰ کاڼړې نهٔ دې)۔

**تبصره** : ددې حدیثونو نه د دجال د فتنې لوئی والې معلوم شو او دا هم اشارةً معلومه شوه چه دجال به د الوهیت دعویٰ کوی او ځان ته به اِله وائی لیکن رسول الله ﷺ اُوفرمایل : چه زمونږ رب د عیبونو نه پاك دې او هغه عیبجن دې ځکه چه هغه دا قدرت هم نهٔ لری چه ځان له سترګه روغه کړی نو ناقص الخلقة انسان به څنګه رب جوړ شی ؟ لیکن دا کوم قدرتونه چه هغه ته ورکړې شویدی نو دا به خالص د بندګانو دپاره فتنه وی چه د هغې تفصیل روستو راروان دې۔

○ بیا کاڼړې کیدل نخه ئې د دجال په باره کښې ذکر کړه اګرکه د دجال د دروغجن کیدو نورې هم ډیرې ظاهری نښې شته۔ وجه دا ده چه کاڼړې کیدل داسې عیب دې چه عالم او امی دواړو ته به

ښکاره کیږی او هر هغه څوك چه د عقلی دلائلو علم هم نهٔ لری نو هغه به هم پیژنی چه دجال رب نشی کیدے۔

او د صحیح مسلم په یو بل روایت کښ ورسره دا زیادت هم راغلے دے چه تاسو پدے پوهیږئ چه هیڅ یو تن په تاسو کښ خپل رب نشی لیدلے تردے چه مر شی (یعنی دنیا کښ رب نشی لیدلے کیدے) نو دا بله نخه د دجال د دروغجن کیدو شوه چه رب په دنیا کښ نشی لیدلے کیدے او دجال چه کله د ربوبیت دعویٰ کوی نو خلق به ئے وینی ۔

**فائده:** حافظ ابن حجرؒ او بعض علماؤ دلته دا اشکال ذکر کړیدے چه دا خبره خو یقینی ثابته ده چه دجال به ددے امت په آخری خلقو کښ راځی او عیسی ؑ به ئے وژنی نو بیا څنګه نوح ؑ او د هغه نه روستو انبیاؤ خپل امتونه د دجال نه یرولی دی ؟۔

**جواب:** ددے جواب دا دے چه په نوح ؑ او د هغه نه روستو انبیاؤ باندے د دجال د راوتو وخت الله تعالیٰ پټ ساتلے وو او صرف د دجال د فتنے نه ئے خبر کړی وو چه داسے لویه فتنه راروانه ده نو ددے وجه نه هغوی خپل امتونه ویرول او نبی ﷺ ته هم په ابتداء کښ معلومات نهٔ وو روستو اطلاع ورکړے شوه لکه پدے باندے دلیل حدیث د مسلم دے :

[اِنْ یَّخْرُجْ وَاَنَا فِیْکُمْ فَاَنَا حَجِیْجُهٗ]

(که دجال راوځی او زه په تاسو کښ ژوندے یم نو زه به د هغه

مقابله کوم غیر ستاسو نه) نو دا جائز وه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دجال راوتلے وے لیکن الله تعالیٰ خپل نبی ته روستو خبر ورکړو چه دجال به په آخره زمانه کښې راوځی نو ددے وجه نه هغه بیا امت ته خبر ورکړو چه عیسی ﷺ به دجال لره وژنی۔
حافظ ابن حجرؒ فرمائی : چه پدے تطبیق سره ټول احادیث راجمع کیږی۔

او علامه ابن العربیؒ فرمائی : د نوح ﷺ او د هغه نه روستو انبیاؤ د دجال نه د یرولو مقصد دا وو چه د فتنو نه ځان بچ کړی او هسے نه چه داسے فتنو کښې واقع شی چه د هغې په وجه ئے ایمان او عقیده خرابه شی او دغه شان نبی ﷺ چه د دجال راتلل نزدے ښکاره کړی دی پدے کښې هم دا غرض دے چه امت د فتنو نه وراندے شی، هره فتنه باندے دا گمان اُوکړی چه دا هسے نه د دجال فتنه نۀ وی او ما د خپل صحیح ایمان او توحید نه وانۀ روی!!۔

او د نبی ﷺ د دجال په باره کښې دا خبره کول چه داسے خبره درته کوم چه هیڅ پیغمبر خپل قوم ته نۀ ده کړے دا دلیل دے چه دجال به د رسول الله ﷺ پدے آخری امت کښې راځی او مخکښې نۀ دے تیر شوے۔

[فتح الباری (۱۳/۹٦) باب ذکر الدجال]

نو پدے کښې رد دے په اسرار عالم صاحب باندے چه هغه وئیلی دی چه دجال نه مراد سامرے دے کوم چه د موسیٰ ﷺ په زمانه کښې تیر شویدے هغه بنی اسرائیل په شرك او فتنو کښې مبتلا

کړی وو او هغه سره هم د دهوکو دپاره داسې اسباب وو چه د عالَم په څیزونو کښې به ئې تصرف کولو لکه د سرو زرو نه ئې داسې سخې جوړ کړو چه آواز به ئې کولو او دلیل کښې ورله دا وائی چه موسیٰ ؑ هغه ته ددې جرم په بدله کښې داسې سزا واوروله او د هغه توبه ئې دا مقرر کړه چه دا به قتل کړې شئ او سامری ته ئې اُووئیل : ﴿ وَاِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهٗ ﴾ (ستا دپاره یو وخت مقرر دې چه ته به د هغې نه مخکښې روستو کیدې نشې)۔ ددې وجه دا ده چه سامرې که په هغه وخت کښې قتل کیدلې شوې نو هغه به نه مړ کیدلې، څکه چه دجال به د عیسیٰ ؑ د لاس نه مری، او سامری ته ئې داسې اُووئیل : ﴿ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَكَ فِی الْحَیٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ ﴾

(ځه ! ستا دا سزا ده چه تهول ژوند کښې به ته داسې وې چه ما له گوتې مه راوړئ) نو سامرې د هغه وخت نه په دغه مجروح حالت کښې غائب شو او لاړو چرته پټ شو)۔

دا رایه خطاء ده څکه چه د دجال خاص علامات دی چه په کتابونو د حدیث او تفسیر او تاریخ او سیرت کښې ذکر شویدی چه هغه په سامری باندې نهٔ پټ کیږی یو خو دا چه هغه به کانړې وی او سامری باره کښې دا چرته نهٔ دی راغلی چه هغه کانړې وو۔ دارنګه د دجال په تندی به ئې کافر لفظ لیکلې وی او د سامری په تندی دا نهٔ دی لیکلې شوی۔ دارنګه د سامری سزا دا وه چه ما له گوتې مهٔ راوړه او دجال به د دهوکې د وجه نه خلق ځان ته رانژدې کوی۔ دارنګه په احادیثو کښې دیته ادنیٰ اشاره هم نشته چه

سامری به دجال وی۔ واللہ تعالیٰ اعلم۔

## د دجال د فتنے او فساد سخت والے :

۱- عمران بن حصین ؓ فرمائی : چه ما د رسول الله نه واوریدل چه فرمایل ئے :

[يَقُوْلُ مَا بَيْنَ خَلْقِ آدَمَ اِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ خَلْقٌ اَكْبَرُ مِنَ الدَّجَّالِ] [مسلم كتاب الفتن، باب فى بقية من احاديث الدجال (٢٩٤٦)

(د آدم ؑ (د پیدائش) نه تر قیامت پورے د الله په مخلوق کښ د دجال نه غټه فتنه نشته)۔

۲- ابو هریره ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [ثَلَاثٌ اِذَا خَرَجْنَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِىْ اِيْمَانِهَا خَيْرًا، طُلُوْعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَالدَّجَّالُ وَدَابَّةُ الْاَرْضِ] [مسلم، باب بيان الزمن الذى لا يقبل فيه الايمان رقم [١٥٨]

(درے کارونو راتلو نه پس به هیڅ شخص ته ایمان راوړل فائده نۀ ورکوی چا چه ددے نه مخکښ ایمان نۀ وی راوړے، یا په حالت د ایمان کښ ئے څه نیك عمل نۀ وی کړے : ۱- نمر د مغرب د طرف نه راختل۔ ۲- د دجال راوتل۔ ۳- او دابة الارض راوتل)۔

یعنی چا چه ددے درے کارونو نه مخکښ هیڅ نیك عمل نۀ وی کړے او ددے درے کارونو نه پس نیك عمل شروع کوی نو دا به ورته فائده نۀ ورکوی، او که چا د مخکښ نه نیك عمل کولو نو ددے درے کارونو نه پس به هم ورته نیك عمل فائده ورکوی۔

ددې حدیث نه معلومه شوه چه د دجال راتلل لویه فتنه ده چه ددې په راتلو سره که انسان اُوس عمل شروع کوی نو دا به ورته فائده نهٔ ورکوی نو نبی ﷺ امت ته ترغیب ورکوي چه د دجال او ددې نورو کارونو د راتلو نه مخکښې مخکښې د آخرت دپاره تیارې اُوکړی او خپل نیك اعمالو کښې مصروف او مشغول شی، هسې نه چه دا کارونه په انسان باندې ناڅاپه راشی بیا به د نیك عمل آرمان کوی لیکن توفیق به ورته نهٔ ملاویږی او نهٔ به قبلیږی۔

۳- عبد الله بن حواله ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [مَنْ نَجَا مِنْ ثَلَاثٍ فَقَدْ نَجَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مَوْتِيْ وَالدَّجَّالُ وَقَتْلُ خَلِيْفَةٍ مُصْطَبِرٍ بِالْحَقِّ مُعْطِيَةٍ]

[مسند احمد ٤٦/٥، ٥٦٣، حاکم (١٠٨/٣)

(څوك چه په درې موقعو کښې محفوظ پاتې شو نو هغه نجات اُوموندو۔ نبی ﷺ درې کرته دا خبره اُوکړه۔ (او بیا ئے اُوفرمایل) زما مرګ، دجال او په حق باندې د ولاړ سخی خلیفه قتل)۔

یعنی څوك چه د نبی ﷺ د وفات په وخت ثابت قدم پاتې شو او په فتنو کښې واقع نشو یعنی ارتداد او نوروفتنو ښکار نکړو نو دا به نجات والا وی۔

دارنګه څوك چه د دجال د فتنې نه محفوظ شو نو دا به نجات والا وی دریم چه کله یو صبرناك او سخی خلیفه چه په حق به کلك ولاړ وی قتل کړې شی او په دغه وخت کښې دا د فتنو نه محفوظ شو نو دا به نجات والا وی)۔

## د دجال نه مخکې
## راتلونکې فتنې او حالات او علامات :

د دجال د راښکاره کېدو نه مخکښې چه کوم علامات راښکاره کیږي هغه دوه قسمه دي (۱) بعض واړه علامات دي چه هغه مخکښې حصه کښې ذکر شو يعنې وخت زر زر تيريدل، د زړه دوره ډيره راتلل، زلزلې ډيرې کيدل، د خلقو بدليدل، د سړو کميدل او د ښځو ډيريدل، دين ناشنا کيدل، په دعاګانو او طهارت کښې د حد نه تجاوز کول، وينځه خپله مالکه زيږول يعنې د لور په مور باندې امر کول۔ د ژوند سره محبت او د مرګ نه نفرت کول، د ګانو بجانو عام رائج کيدل، امت مسلمه په شرك کښې اخته کيدل، ډير دروغ وئيل، د ښځو په کاروبارونو کښې شرکت کول، د بدکارئ او زناګانو زياتيدل، خلقو کښې د بخل بيماری زياتيدل، په ويښتو کښې تور رنګ استعمالول، د دروغو ګواهی ورکول، د مال او دولت فراخه کيدل، د خيانت عام کيدل، شراب حلال ګنړل، صله رحمی او رشته داری پريخودل، بد ګاونډي توب اختيارول، قرآن کريم د سوال کولو ذريعه جوړول، د شکلونو مسخ کيدل، د نيکانو خلقو ختميدل، د کافرانو په مسلمانانو باندې راجمع کيدل لکه د ماتې ډوډئ په شان، د مرګ آرزو کول، او د مساجدو ښائسته کول، د قلم راښکاره کيدل، قتل او غارت او خونريزی زياتيدل، دين او ايمان د دنياوی مالونو دپاره خرڅول، غريبانان مالداره کيدل،

بازارونه نزدې نزدې کیدل، علم پورته کیدل وغیره علامات۔

دا ټول علامات د قیامت ډیر مخکښې زمانه کښې ښکاره شویدی نو دا ددې خبرې دلیل دې چه اوس به غټ علامات راښکاره کیږي چه په هغه غټو علاماتو د قیامت کښې به یوه علامه د دجال راښکاره کیدل وی هغه لس علامات دی۔ چه مخکښې ئې تفصیل ذکر شویدې۔

(۲) دویم نور علامات او حالات دی چه هغه به بالخصوص د دجال نه مخکښې راپیښیږي بعض د هغې نه دا دی :

## ۱- د رومیانو شمار زیاتیدل :

مستورد بن شداد رضی الله عنه عمرو بن عاص رضی الله عنه ته اُووئیل :

[سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ : تَقُوْمُ السَّاعَةُ وَالرُّوْمُ اَكْثَرُ النَّاسِ فَقَالَ لَهٗ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ اَبْصِرْ مَا تَقُوْلُ ؟ قَالَ : اَقُوْلُ مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ : لَئِنْ قُلْتَ ذَاكَ اِنَّ فِيْهِمْ لَخِصَالًا اَرْبَعًا اِنَّهُمْ لَاَحْلَمُ النَّاسِ عِنْدَ فِتْنَةٍ وَاَسْرَعُهُمْ اِفَاقَةً بَعْدَ مُصِيْبَةٍ وَاَوْشَكُهُمْ كَرَّةً بَعْدَ فَرَّةٍ وَخَيْرُهُمْ لِمِسْكِيْنٍ وَيَتِيْمٍ وَضَعِيْفٍ وَخَامِسَةٌ حَسَنَةٌ جَمِيْلَةٌ وَاَمْنَعُهُمْ مِنْ ظُلْمِ الْمُلُوْكِ]

[مسلم كتاب الفتن، باب تقوم الساعة والروم اكثر الناس : ۲۸۹۸] [مسند احمد ۳۱٤/٤]

(ما د رسول الله نه آوریدلی دی چه قیامت به په داسې حالت کښې قائمیږي چه رومیان (یعنی عیسایان) به د ټولو خلقو نه په شمار کښې زیات وی۔ عمرو رضی الله عنه اُووئیل : سوچ سره خبره کوه، مستورد اُووئیل : زه هغه خبره کوم کومه چه ما د رسول الله ﷺ آوریدلې ده

چه فرمایل ئے۔ عمرو اُوفرمایل : که ته دا وائی (نو دا خبره به رشتینی وی) ځکه چه عیسایانو کښې څلور خصلتونه دی : ۱- د مصیبت په وخت کښې انتهائی صبرناك دی۔ ۲- د مصیبت نه روستو د ټولو نه زر رابیداریږی۔ ۳- د تختیدو نه روستو دوباره د ټولو نه مخکښې حمله کونکی دی۔ ٤- د مسکینانو او یتیمانانو او کمزورو دپاره غوره دی۔ ٥- او یو پنځم خصلت ډیر ښه خصلت دے چه دا د ټولو خلقو نه زیات بادشاهانو لره د ظلم نه منع کونکی دی)۔

دا علامه هم بالکل رشتینی شویده ځکه چه په دنیا کښې د ټولو انسانانو نه عیسایان په شمار کښې زیات دی۔

## ۲- مسلمانان به د عیسایانو سره ملګری شی او د یو دشمن سره به جنګیږی :

ذِی مخبر رضی الله عنه د جبیر رضی الله عنه نه د صلح په باره کښې تپوس اُوکړو نو هغه اُووئیل : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه فرمایل ئے:

[سَتُصَالِحُوْنَ الرُّوْمَ صُلْحًا آمِنًا فَتَغْزُوْنَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ فَتُنْصَرُوْنَ وَتَغْنَمُوْنَ وَتَسْلَمُوْنَ ثُمَّ تَرْجِعُوْنَ حَتّٰى تَنْزِلُوْا بِمَرْجٍ ذِیْ تُلُوْلٍ فَيَرْفَعُ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ النَّصْرَانِيَّةِ الصَّلِيْبَ فَيَقُوْلُ غَلَبَ الصَّلِيْبُ فَيَغْضَبُ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَيَدُقُّهُ فَعِنْدَ ذٰلِكَ تَغْدُرُ الرُّوْمُ وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ]

[ابوداود، کتاب الملاحم، باب ما یذکر من ملاحم الروم (٤٢٩٢) ابن ماجه (٤١٤٠)۔

(زر دے چه تاسو به د رومیانو سره د امن والا صلح اُوکړئ، بیا به تاسو او دوی د یو دشمن سره جنګ اُوکړئ نو تاسو سره به مدد اُوکړے شی او غنیمتونه به حاصل کړئ او په سلامتیا به پاتے شئ بیا به راواپس شئ او په شګلنه زمکه به پړاؤ واچوئ نو هلته به د عیسایانو نه یو تن صلیب پورته کړی او اُوبه وائی : صلیب غالبه شو۔

نو د مسلمانانو نه به یو سړے غصه شی او هغه صلیب به مات کړی نو پدے وخت کښ به رومیان عیسایان لوظ مات کړی او (خلق به) جنګ دپاره راجمع کړی)۔

یعنی مسلمانان او عیسایان به په شریکه په ملګرتیا سره د نورو کافرانو یهودیانو وغیره ؤ سره جنګ کوی او بیا به دوی ته فتح ملاویږی او په شریکه به یوه لاره روان وی چه دمه اُوکړی نو هلته به یو سړے د نصاراؤ صلیب پورته کړی چه ددے په وجه غلبه اُوشوه نو مسلمان به غصه شی او هغه به ورله مات کړی۔ بیا به دوی هم صلح ماته کړی او جنګ دپاره به تیارے شروع کړی۔

## ۳- د مسلمانانو او عیسایانو ترمینځ به لوئی جنګ راپورته شی :

یسیر بن جابر ﷺ نه روایت دے :

[هَاجَتْ رِيحٌ حَمْرَاءُ بِالْكُوفَةِ فَجَاءَ رَجُلٌ لَيْسَ لَهُ هِجِّيرَى إِلَّا يَا عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ! جَاءَتِ السَّاعَةُ قَالَ : فَقَعَدَ وَكَانَ مُتَّكِئًا إِنَّ السَّاعَةَ لَا تَقُومُ حَتّٰى

لَا يُقْسَمَ مِيرَاثٌ وَلَا يُفْرَحَ بِغَنِيمَةٍ ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ هٰكَذَا وَنَحَّاهَا نَحْوَ الشَّامِ فَقَالَ : عَدُوٌّ يَجْمَعُونَ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ وَيَجْمَعُ لَهُمْ أَهْلُ الْإِسْلَامِ، قُلْتُ : الرُّومَ تَعْنِيْ ؟ قَالَ : نَعَمْ، قَالَ : وَيَكُونُ عِنْدَ ذَاكُمُ الْقِتَالِ رِدَّةٌ شَدِيدَةٌ فَيَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُونَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً فَيَقْتَتِلُونَ حَتّٰى يَحْجِزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ فَيَفِيءُ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ ثُمَّ يَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُونَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً فَيَقْتَتِلُونَ حَتّٰى يُمْسُوا فَيَفِيءُ هٰؤُلَاءِ كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ ثُمَّ يَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُونَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا غَالِبَةً فَيَقْتَتِلُونَ حَتّٰى يُمْسُوا فَيَفِيءُ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الرَّابِعِ نَهَدَ إِلَيْهِمْ بَقِيَّةُ أَهْلِ الْإِسْلَامِ فَيَجْعَلُ اللّٰهُ الدَّائِرَةَ عَلَيْهِمْ فَيَقْتَتِلُونَ مَقْتَلَةً إِمَّا قَالَ لَا يُرٰى مِثْلُهَا وَإِمَّا قَالَ لَمْ يُرَ مِثْلُهَا حَتّٰى إِنَّ الطَّائِرَ لَيَمُرُّ بِجَنَبَاتِهِمْ فَمَا يُخَلِّفُهُمْ حَتّٰى يَخِرَّ مَيْتاً فَيَتَعَادُّ بَنُو الْأَبِ كَانُوا مِائَةً فَلَا يَجِدُونَهُ بَقِيَ مِنْهُمْ إِلَّا الرَّجُلُ الْوَاحِدُ فَبِأَيِّ غَنِيمَةٍ يُفْرَحُ أَوْ أَيُّ مِيرَاثٍ يُقَاسَمُ ؟ فَبَيْنَاهُمْ كَذٰلِكَ إِذْ سَمِعُوا بِبَأْسٍ هُوَ أَكْبَرُ مِنْ ذٰلِكَ فَجَاءَهُمُ الصَّرِيخُ أَنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَلَفَهُمْ فِي ذَرَارِيِّهِمْ فَيَرْفُضُونَ مَا فِي أَيْدِيهِمْ وَيُقْبِلُونَ فَيَبْعَثُونَ عَشْرَ فَوَارِسَ طَلِيعَةً قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ : إِنِّيْ لَأَعْرِفُ أَسْمَائَهُمْ وَأَسْمَاءَ آبَائِهِمْ وَأَلْوَانَ خُيُولِهِمْ هُمْ خَيْرُ فَوَارِسَ عَلٰى ظَهْرِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ أَوْ مِنْ خَيْرِ فَوَارِسَ عَلٰى ظَهْرِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ]

[مسلم کتاب الفتن باب اقبال الروم فی کثرة القتل عند خروج الدجال)

(۲۸۹۹) (مسند احمد : ۵٤٤/۱) والحاکم (۵۲٤/٤)

(یو ځل په کوفه کښې سور طوفان راغلو (یعنی سره هواء راوالوته) نو یو سړے راغلو چه د هغه بل آواز نهٔ وو سویٰ ددې نه چه داسې ئې وئیل : اے عبد الله بن مسعود ! قیامت راغلو۔ یسیر

ﷺ فرمائی : عبد الله بن مسعود تکیه لګولے ناست وو نو (ددے خبرے په آوریدو) نیغ کیناستو او وے فرمایل : ((قیامت به تر هغه وخت نهٔ قائمیږی تردے چه د میراث تقسیم ختم نشی او د غنیمت په مال باندے خوشحالی پاتے نهٔ شی)) بیائے شام طرف ته په لاس سره اشاره اُوکړه او وے فرمایل : ((دشمنان به د مسلمانانو په خلاف او مسلمانان به د خپلو دشمنانو په خلاف دلته (خپل خپل فوجونه) راجمع کوی۔ (راوی وائی) ما اُووئیل : آیا ستا مراد د رومیان دی؟ وے فرمایل : آؤ!۔ بیا به ددے قتال او جنګ سره سخت مرتد والے وی۔نو مسلمانان به د مرګ دپاره بیعت اُوکړی او اُوبه وائی چه مونږ به د غالب کیدو نه بغیر نهٔ واپس کیږو، بیا به جنګ شروع کړی تردے چه د دوی ترمینځ به شپه حائل (مانع) شی، او دواړه ډلے به بغیر د فتح نه واپس کیږی او کوم لښکر چه جنګ دپاره رامخکښ شوے وو هغه به بالکل فناء شی بیا (په دوئیمه ورځ) به مسلمانان د مرګ شرط اُولګوی چه بغیر د فتح نه به نهٔ واپس کیږو او جنګ به شروع کړی تردے چه شپه به د دوی ترمینځ حائل شی او دواړه ډلے (یعنی مسلمانان او رومیان) به بغیر د فتح نه واپس شی او کوم لښکر چه د جنګ دپاره راوتلے وو هغه به بالکل فناء شی بیا (په دریمه ورځ) به مسلمانان د مرګ او فتح په شرط راوځی او مابنامه پورے به جنګیږی، بیا به دواړه ډلے بغیر د فتح نه واپس شی او کوم لښکر چه د جنګ دپاره رامخکښ شوے وو هغه به بالکل فناء شی۔ بیا په څلورمه ورځ به باقی

مسلمانان رومیانو طرف ته ورمخکښ شي نو الله تعالیٰ به د دوی په ذریعه دشمنان مغلوب کړي او دوی به داسې جنګ اُوکړي چه هیڅوک به داسې نهٔ وي لیدلې تردې چه مارغان به د دوی د لاشونو (جسدونو) دپاسه تیریږي نو لا تیر شوي به نهٔ وي چه مړه به راګوزار شي۔ بیا د یو پلار که سل ځامن وي نو په واپسئ کښې به د هغوی نه صرف یو باقي پاتې وي، نو پس په کوم غنیمت باندې به خوشحالي اُوشي او کوم میراث به تقسیم کړې شي ؟ پدې مینځ کښې به هغوی ددې نه لویه خبره واوري چه یو آواز کونکې (یعنی شیطان) به آواز پورته کړي چه دجال ستاسو اهل وعیال ته راغلې دې نو دغه خلق به ټول هر څه په دغه ځائې پریدي او هغه طرف ته به متوجه شي او لس شاهسواران به د هغه د تفتیش دپاره اُولیږي۔ نبي ﷺ فرمائي : ((زه د هغوی او د هغوی د پلارانو نومونه او د هغوی د اسونو رنګونه ډیر ښه پیژنم او دا شاهسواران به په دغه ورځ په مخ د زمکه باندې د ټولو نه بهترین شاهسواران وي))۔

یعنی مسلمانانو باندې به ډیر سخت جنګونه راځي چه ډیر نام نهاد او بزدل مسلمانان به پکښې مرتد کیږي او کوم خالص مسلمانان چه جنګ کوي نو هغوی به هم اکثر شهیدان کیږي او آخر کښې به غلبه مسلمانانو ته ملاویږي۔ ان شاء الله تعالیٰ۔

○ په یو روایت کښې دي چه معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اَلْمَلْحَمَةُ الْكُبْرىٰ وَفَتْحُ الْقُسْطُنْطِيْنِيَّةِ وَخُرُوْجُ الدَّجَّالِ فِيْ سَبْعَةِ اَشْهُرٍ]
(ابوداود کتاب الملاحم باب فی تواتر الملاحم : (٤٢٩٥)۔

(جنګِ عظیم او د قسطنطینیه فتح او د دجال راوتل (دا دریواړه کارونه) به په اُووه میاشتو کښې واقع کیږی)۔

ددے نه معلومه شوه چه د مسلمانانو او د کافرانو ترمینځ به یو عظیم جنګ راپورته کیږی او دا پیشنګوئی ده چه مسلمانانو ته به الله تعالیٰ د قسطنطینیه فتح ورکوی او کافران به مغلوبه کوی۔

# ٤ – د سرو زرو غر به راښکاره کیږی:

ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :
[لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَحْسِرَ الْفُرَاتُ عَنْ جَبَلٍ مِنْ ذَهَبٍ يَقْتَتِلُ النَّاسُ عَلَيْهِ فَيُقْتَلُ مِنْ كُلِّ مِائَةٍ تِسْعَةٌ وَتِسْعُوْنَ وَيَقُوْلُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ لَعَلِّيْ اَكُوْنُ اَنَا الَّذِيْ اَنْجُوْ] [مسلم کتاب الفتن : ٢٨٩٤]

(قیامت به تر هغه وخت پورے نهٔ قائمیږی چه ترڅو د فُرات دریاب نه د سرو زرو غر راښکاره نهٔ شی چه په هغے باندے به خلق جنګ کوی او د هر سلو کسانو نه به نهه نوی کسان وژلے کیږی، چه هر سړے به دا فکر کوی چه شاید دغه نجات موندونکے شخص به زهٔ یم)۔

په بل روایت کښې دی : ((کله چه خلق ددے غر په باره کښې خبر شی نو دے طرف ته به راروان شی او څوک چه ددے غر خوا کښې وی، هغه به وائی چه که چرته مونږ دا پریدو نو نور خلق به دا ټول

ختم کړی۔ نبی ﷺ فرمائی : چه ددې خزانې د حاصلولو دپاره به دوی جنګ شروع کړی او د هر سلو نه به نهه نوی قتل کړې شی))
(مسلم : ۲۸۹۵)

په یو بل روایت کښې دی : ((څوك چه دغه (خزانې خوا کښې) موجود وی نو ددې نه دې هیڅ نهٔ اخلی))۔

د فُرات دریاب په عراق کښې دې چه ددې نه د سرو زرو غر راښکاره کیدل د قیامت یوه نښه ده چه تر اُوسه پورې نهٔ ده ښکاره شوې۔ بعض علماؤ د سرو زرو د غر نه پټرول وغیره مراد کړیدی، لیکن دا خبره صحیح نهٔ ده بلکه ددې نه د حقیقی غر د سرو زرو مراد دې۔

بعض علماؤ پکښې لا دا هم وئیلی دی چه د دجال د راوتلو نه مخکښې چه کوم لوئی جنګ واقع کیږی د هغې سبب به ددې خزانې حاصلول وی۔ والله اعلم۔

۵- قسطنطینیه به فتح کیږی :

ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَنْزِلَ الرُّوْمُ بِالْاَعْمَاقِ اَوْ بِدَابِقَ فَيَخْرُجُ اِلَيْهِمْ جَيْشٌ مِنَ الْمَدِيْنَةِ مِنْ خِيَارِ اَهْلِ الْاَرْضِ يَوْمَئِذٍ فَاِذَا تَصَافُّوْا قَالَتِ الرُّوْمُ : خَلُّوْا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِيْنَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ فَيَقُوْلُ الْمُسْلِمُوْنَ لَا وَاللّٰهِ لَا نُخَلِّيْ بَيْنَكُمْ فَيُقَاتِلُوْنَهُمْ فَيَنْهَزِمُ ثُلُثٌ لَايَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ اَبَدًا وَيُقْتَلُ ثُلُثُهُمْ اَفْضَلُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللّٰهِ وَيَفْتَحُ الثُّلُثُ لَا يُفْتَنُوْنَ اَبَدًا فَيَفْتَتِحُوْنَ قُسْطُنْطِيْنِيَّةَ فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُوْنَ الْغَنَائِمَ قَدْ عَلَّقُوْا سُيُوْفَهُمْ بِالزَّيْتُوْنِ اِذْ صَاحَ فِيْهِمُ الشَّيْطَانُ اِنَّ الْمَسِيْحَ قَدْ خَلَفَكُمْ فِيْ اَهْلِيْكُمْ

فَيَخْرُجُوْنَ وَذٰلِكَ بَاطِلٌ فَإِذَا جَاؤُا الشَّامَ خَرَجَ فَبَيْنَاهُمْ يُعِدُّوْنَ لِلْقِتَالِ يُسَوُّوْنَ الصُّفُوْفَ إِذْ أُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ فَيَنْزِلُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ فَأَمَّهُمْ فَإِذَا رَآهُ عَدُوُّ اللّٰهِ ذَابَ كَمَا يَذُوْبُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ فَلَوْ تَرَكَهُ لَانْذَابَ حَتّٰى يَهْلِكَ وَلٰكِنْ يَقْتُلُهُ اللّٰهُ بِيَدِهٖ فَيُرِيْهِمْ دَمَهٗ فِيْ حَرْبَتِهٖ] [صحيح مسلم، كتاب الفتن : ٢٨٩٧]

(قیامت به تر هغه وخت پورے نهٔ قائمیږی چه تر څو رومیانو په اعماق یا دابق (شام) مقام کښې پړاؤ نهٔ وی اچولے۔ نو دوی طرف ته به د مدینے نه یو لښکر (د جنګ په غرض) راوځی چه دا به په دغه ورځ په مخ د زمکه کښې د ټولو نه بهترین لښکر وی، کله چه دوی مقابلے دپاره صفونه اُوتړی، نو رومیان به دوی ته اُووائی چه تاسو زمونږ او زمونږ د هغه خلقو د مینځ نه اخوا شئ کوم چه یے دینه شویدی" مسلمانان به ورته اُووائی : " په الله قسم ! مونږ هیچرے داسے نشو کولے چه خپل مسلمانان ورونه (کوم چه ستاسو نه مسلمانان شویدی) تاسو ته حواله کړو" بیا به دوی د هغوی سره جنګ شروع کړی او د مسلمانانو نه به یوه دریمه حصه په شا باندے واوړی (یعنی اُویه تښتی) چه د هغوی توبه به الله تعالیٰ هیڅکله نهٔ قبلوی، او یوه دریمه حصه خلق به شهیدان شی چه د ابه د الله تعالیٰ په نیز د ټولو نه افضل شهیدان وی او یوه دریمه حصه خلق به فتح حاصله کړی چه دوی به بیا هیڅ کله په فتنه کښې نهٔ واقع کیږی، نو دوی به قسطنطینیه فتح کړی۔ بیا چه کله دوی خپلے توری د زیتون (ونے) پورے زوړندے کړے وی او غنمیتونه به راټولوی نو پدے کښې به شیطان چغے سره آواز

اُوکړی چه ستاسو کورونو ته مسیح (دجال) راغلے دے۔ نو دوی چه (دا واوری) نو واپس به راشی لیکن دا خبر به دروغجن وی۔ بیا کله چه دوی شام ته اُورسیږی نو دجال به راوځی۔ نو پدے مینځ کښې به دوی د جنګ دپاره تیاری کوی او صفونه به برابروی چه پدے کښې به د مانځه دپاره اقامت اُوشی نو عیسی علیه السلام به راکوز شی او د هغوی امامت به اُوکړی۔

کله چه د الله دشمن (دجال) هغه اُووینی نو داسے به ویلی کیږی لکه څنګه چه مالګه په اُوبو کښې ویلی کیږی، که عیسی علیه السلام دجال لره همداسے پریدی نو خپله به ویلی شی لیکن الله تعالیٰ هغه د عیسی علیه السلام په لاس سره قتلوی نو هغه به (مسلمانانو) ته د هغه وینه په خپله نیزه کښې اُوښائی))

دے دپاره چه د مسلمانانو رعب ختم شی او خوشحالی ئے زیاته شی۔

پدے حدیث کښې دا خبره راغله چه عیسی علیه السلام به امامت کوی نو دلته په حدیث کښې اختصار شویدے، امام مهدی به عیسی علیه السلام ته د امامت کولو درخواست اُوکړی لیکن هغه به انکار اُوکړی چه ستا دپاره اقامت شویدے نو ته ډیر لائق ئے چه ته امامت اُوکړے او دا ددے امت کرامت دے۔ لیکن د نورو روایاتو نه دا خبره ثابته ده چه بیا به مشری او امامت عیسی علیه السلام ته پاتے شی او باقی قیادت به د هغه وی۔ صرف پدے اول ځل مونځ کښې د مهدی امامت دے۔

دارنګه په دے حدیث کښې دا هم راغلل چه د مهدی د فوجونو

سره به د رومیانو جنګونه راغلی وی او آخر به دوی ته د قسطنطینیه فتح ملاؤ شوی وی او بیا به ئې د دجالی فوج سره مقابله راغلی وی چه عیسیٰ به راکوز شی۔

○ د معاذ بن جبل ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[عُمْرَانُ بَيْتِ الْمُقَدَّسِ خَرَابُ يَثْرِبَ وَخَرَابُ يَثْرِبَ خُرُوْجُ الْمَلْحَمَةِ وَخُرُوْجُ الْمَلْحَمَةِ فَتْحُ الْقُسْطُنْطِيْنِيَّةِ وَفَتْحُ الْقُسْطُنْطِيْنِيَّةِ خُرُوْجُ الدَّجَّالِ]

[ابوداود کتاب الملاحم، باب فی امارات الملاحم (٤٢٩٤) احمد [٣٠٩/٥]

(د بیت المقدس آبادی به د یثرب (مدینے) خرابیدو مقدمه وی او د مدینے خرابی به د جنګونو د شروع کیدو سبب وی او د جنګونو شروع کیدل به د قسطنطینیه (علاقے) فتح کیدلو انجام وی او د قسطنطینیه فتح کیدل به د دجال د راوتو اعلان وی)۔

د بیت المقدس آبادی نه بعض شارحین داسے مراد اخلی چه کامله طریقے سره آبادی د بیت المقدس نخه ده چه مدینه به خرابیږی۔ بعض وائی: د بیت المقدس آبادی نه مراد د خرابیدو نه پس آبادی ده۔یعنی یو ځل بیت المقدس وران کړے شی بیا به آباد کړے شی نو دے نه روستو به د مدینے خراب والے شروع شی۔

لکه کافران اُوس کوشش کوی چه بیت المقدس خراب کړی او په خپله طبع ئې د دجال دپاره جوړ کړی۔

○ د نافع بن عتبه ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[تَغْزُوْنَ جَزِيْرَةَ الْعَرَبِ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ ثُمَّ فَارِسَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ ثُمَّ تَغْزُوْنَ الرُّوْمَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ ثُمَّ تَغْزُوْنَ الدَّجَّالَ فَيَفْتَحُهُ اللّٰهُ قَالَ، فَقَالَ نَافِعٌ يَا جَابِرُ ! لَا نُرَى

الدَّجَّالَ يَخْرُجُ حَتّٰى يُفْتَحَ الرُّوْمُ] [مسلم، کتاب الفتن باب ما یکون من فتوحات المسلمین قبل الدجال [۲۹۰۰]

(تاسو به د جزیرة العرب والو سره اُوجنګیږئ نو الله تعالیٰ به هغه (تاسو ته) فتح کړی، بیا به تاسو د فارس (ایران) والو سره اُوجنګیږئ او الله تعالیٰ به (هغه هم تاسو ته) فتح کړی، بیا به ستاسو د رومیانو سره جنګونه راشی نو الله تعالیٰ به ئے فتح کړی بیا به تاسو د دجال سره جنګ راشی نو الله تعالیٰ به (تاسو ته) په هغه باندے فتح درکړی بیا نافع رضی الله عنه اُووئیل : اے جابره ! زمونږ د علم مطابق دجال به تر هغه وخته پورے نۀ راوځی چه روم فتح نۀ شی)۔

۷- عمیر بن هانی فرمائی : ما د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه واوریدل چه فرمایل ئے : مونږ د رسول الله ﷺ سره سره حاضر وو نو هغه فتنے ذکر کړے او هغه ئے په تفصیل سره بیان کړے تردے چه د احلاس فتنه ئے بیان کړه، یو سړی تپوس اُوکړو چه د احلاس فتنه څه ده ؟ وے فرمایل : ((دا فتنه به د تیختے او کور او مالونو لوټ کولو وی، بیا به د خوشحالئ او ښه حالت فتنه وی، د هغے لوګے به د داسے شخص د قدمونو د لاندے راوځی چه چه هغه به زما د اهل بیتو نه وی، هغه به دا ګمان کوی چه هغه زما نه دے حال دا چه هغه ما نه نۀ دے، یقیناً زما دوستان خو متقیان دی، بیا به خلق په یو نا اهله شخص باندے متفق کیږی چه ے استقامته به وی، بیا به توره فتنه وی، دا فتنه به داسے وی چه د

امت هیڅ یو فرد به ترېے نهٔ بچ کیږی مگر هغه ته د هغې څپیړه رسیږی، کله هم چه اُووئیلے شی چه دا فتنه ختمه شوه نو هغه به اُوګدیږی، پدے فتنو کښ به سرے صبا کښ مؤمن وی او ماښام به کافر کیږی۔ خلق به پدے حالت کښ وی تردے چه په دوه خیمو کښ به تقسیم شی یو د ایمان والو خیمه چه په هغې کښ بالکل نفاق نهٔ وی او دویمه د نفاق والو خیمه چه په هغې کښ به ایمان نهٔ وی، نو کله چه تاسو دغسے تقسیم شئ نو بس د دجال انتظار کوئ چه نن به راشی یا صبا له۔ [مسند احمد (٦١٦٨) ابوداود (٤٢٤٢) وصححه الالبانی فی الصحیحة (٩٧٤)

**فائده** : ددے حدیث نه دا معلومیږی چه د دجال د فتنے نه مخکښ چه کومه فتنه وی نو هغه به (الدهیماء) یعنی د سخت تیارے فتنه وی۔ ددے خاصیت دا دے چه هر کور ته به رسیږی، هیڅ کور به ددے نه نهٔ بچ کیږی۔ آیا د دجال نه مخکښ زمانه دا زمونږ زمانه نهٔ ده ؟ که همدا وی نو بیا د تِیَرُو فتنه څه شے دے چه د مسلمانانو هر کور ته رسیدلے ده؟ دا کومه تیاره ده چه هر فرد په کښ ډوب شویدے ؟۔ آیا دا به د زنانهٔ، د ډول وسنګار، رواجونو، بدعاتو، ټی وی، وی سی، آر، کیبل، نیټ ورك، موبائلونه، تائف، ریډیو، ګانو بجانو او د مال او دولت او اولادو فتنے نهٔ وی ؟۔

الله تعالیٰ دِے مونږ ټول د هر قسم فتنو او فکری ګمراهیانو نه محفوظ اُوساتی۔ آمین۔

٨- حذیفه رضی الله عنه اُوفرمایل چه مونږ د رسول الله ﷺ

سره حاضر وو چه هغه دجال ذکر کړو وے فرمایل : ستاسو نه د بعضو فتنه زما په نیز د دجال د فتنے نه لویه ده۔ فتنه وړه وی او که غټه هغه د دجال د فتنے نه راپیدا کیدونکے ده، نو څوك چه د دجال د فتنو نه د مخکنو فتنو نه بچ شو نو هغه به د دجال د فتنے نه هم بچ کیږی، قسم په الله! دجال به مسلمان ته هیڅ نقصان نشی رسولے، د هغه د دواړو سترګو په مابین کښ به کافر لیکلے شوے وی۔

[اسناده صحیح : احادیث فی الفتن والحوادث : ۲۵٦/۱) (والبزار ۳۳۹۱ کشف الاستار) ابن حبان (٦٨٠٧ الاحسان) الصحیحة (۳۰۸۲)

د مخکنی حدیث نه دا هم معلوم شوه چه د دجال د راتلو نه مخکښ به داسے حالات راپیدا کیږی چه الله تعالیٰ به ایمان والا او منافقان د یو بل نه بیلوی او مخلصین او مجرمین به جدا جدا کیږی نو هر سړے به د خپل ځان په باره کښ دا فیصله کولے شی چه هغه د رسول الله ﷺ په لښکر کښ شامل شی او که د دجال د لښکر سره۔

## ۹- د محراب او منبر نه د دجال تذکرے بندیدل :

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : لَا یَخْرُجُ الدَّجَّالُ حَتّٰی یَذْهَلَ النَّاسُ عَنْ ذِکْرِهٖ وَحَتّٰی تَتْرُكَ الْاَئِمَّةُ ذِکْرَهٗ عَلَی الْمَنَابِرِ ] [رواه عبد الله بن الامام احمد وقال الهیثمی وهی صحیحة کما قال ابن معین وبقیة رجاله ثقات وقال فی تعلیق مسند احمد ط الرسالة (۳۵۱/۲٦) : رواه ابن السکن وقال اسناده صالح لکن فیه

ارسال قاله السندی ) وضعفه بعضهم براشد بن سعد)

**(رسول الله ﷺ فرمائی : دجال به تر هغه وخت نۀ راوځی چه خلق د هغه د ذکر کولو نه غافل شی او امامان په منبرو باندے د دجال په باره کښ بیانات پریدی)۔**

**که ددے حدیث په رنړا کښ اُوکتلے شی نو نن صبا زمانه کښ عام امامان د دجال په باره کښ هیڅ تذکره نۀ کوی نۀ ددے په باره کښ خپله څۀ معلومات لری بلکه ډیر مسلمانان د دجال د نوم نه هم خبر نۀ دی۔ والله المستعان۔**

**په همدے نیت مونږ اراده اُوکړه چه د دجال په باره کښ مسلمانانو ورونو ته په پښتو ژبه کښ یو کتاب اُولیکلے شی چه ددے عظیمے فتنے نه مونږ او ټول مسلمانان بچ شو او هغه فتنے ته راوښن شو او د هغے د دفع کولو سوچ اُوکړو۔**

## ۱۰- نهرونه او چینے به اُوچے شی :

[عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ : لِلدَّجَّالِ آيَاتٌ مَعْلُوْمَاتٌ إِذَا غَارَتِ الْعُيُوْنُ وَنَزَفَتِ الْاَنْهَارُ وَاصْفَرَّ الرَّيْحَانُ وَانْتَقَلَتْ مَذْحِجُ وَهَمْدَانُ مِنَ الْعِرَاقِ فَنَزَلَتْ قِنِّسْرِيْنَ فَانْتَظِرُوْا الدَّجَّالَ غَادِيًا اَوْ رَائِحًا] هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه ووافقه الذهبی (مستدرك للحاكم ٥٠٦/٤)

**(ترجمه : عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما فرمائی : د دجال د راتلو نه مخکښ یو څو معلومے نخے دی۔ کله چه چینے(یا د زمکے اُوبه) لاندے لاړے شی او د نهرونو اُوبه راویستلے شی او گیاه**

(یعنی سبزی، شینکی) زیره شی او د مذحج او همدان قبیله د عراق نه نقل شی او قنسرین کښې اُووسیږی نو تاسو د دجال انتظار کوئ چه صبا به راځی یا ماښام)۔

○ اسماء بنت یزید انصاریه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ زما په کور کښې وو، نو د دجال تذکره ئے اُوکړه چه د دجال نه مخکښې به درے کالونه وی یو کال به آسمان خپل دریمه حصه باران بند کړی او زمکه به خپله یوه حصه پیداوار بند کړی۔ دویم کال به آسمان خپل دوه حصے باران بند کړی او زمکه به خپل دوه حصے پیداوار بند کړی او دریم کال به آسمان خپل مکمل باران بند کړی او زمکه به خپل مکمل پیداوار بند کړی، نو نۀ به کور والا او نۀ به د داړے والا او نۀ به د خنگری والا حیوان بچ کیږی بلکه ټول به هلاکیږی)

[مسند احمد ٦/٤٥٥) وانظر فی قصة المسيح الدجال (ص ٧٦) وفيه شهر وهو حسن الحديث]۔

**فائده** : دا احادیث دلیل دے چه داسے وخت راروان دے چه وخت په وخت به پدے خوراکونو او بارانونو او آمدنو کښې بے برکتی پیدا کیږی او هغه خبره د رسول الله ﷺ به رشتینی وی چه د دجال سره به دا هرڅه وی او هغه به خلقو ته دعوت ورکوی چه زما خبره اُومنه زه به دومره فراخی درکړم او که نۀ وی نو قحط به دربانديے راولم۔ لیکن الله تعالیٰ به د خپلو ایمان والا بندگانو سره ضرور مدد کوی او د هغوی به داسے حفاظت کوی چه په سبحان الله الحمد لله وئیلو

سره به مرېږی۔

## ۱۱- دریائے فرات به اُوچیرېږی :

قیس بن ابی حازمؒ فرمائی : حذیفه بن الیمان (یوه ورځ) په کوفه کښې را اُووتو او د هغه سره یو سړے وو نو فرات طرف ته ئے اُوکتل نو خپل ملګری ته ئے اُوفرمایل :

[كَيۡفَ اَنۡتُمۡ يَوۡمَ تَرَاهُمۡ يَخۡرُجُوۡنَ اَوۡ يُخۡرَجُوۡنَ مِنۡهَا لَايَذُوۡقُوۡنَ مِنۡهُ قَطۡرَةً، قَالَ رَجُلٌ : وَتَظُنُّ ذَاكَ يَا اَبَا عَبۡدِ اللّٰهِ ؟ قَالَ : مَا اَظُنُّهُ وَلٰكِنۡ اَعۡلَمُهُ]

[ابن ابی شیبة ۷/۵۲۷] والحاکم [۵۸۹/٤] وصححه ووافقه الذهبی) وسنده صحیح]

(ستاسو به په هغه وخت څه حال وی کله چه تاسو کوفے والا اُووینئ چه ددے ځائے نه به اُوځی، یا به ویستلے شی چه ددے فرات نه به یوه قطره اُوبه هم نهٔ څکی یو شخص اُووئیل : اے ابو عبد الله ! ته دا ګمان لرے (چه داسے به اُوشی ؟) هغه اُوفرمایل : زه ګمان نهٔ کوم بلکه زما علم دے (په بل روایت کښې دی : زما یقین دے)۔

○ عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : نزدے ده چه تاسو به په خپله دے علاقه کښې د لاس وینځلو دپاره اُوبه غواړئ او هغه به تاسو ته نهٔ ملاویږی۔ ټولے اُوبه به اصل (ماخذ) طرف ته لاړے شی۔ نو باقی مسلمانان او اُوبه به په شام کښې وی۔

[مستدرك ٥٤٩/٤ صحیح] [اتحاف الجماعة بما جاء فی الفتن والملاحم واشراط الساعة : ۱۸۹/۲) لحمود عبد الله التویجری]۔

دا احادیث په حکم د مرفوع احادیثو کښې دی ځکه چه غیبی

امور صحابی د ځان نه نشی ذکر کولے۔

**فائده :** دریائے فرات باندے ترکی حکومت دیارلس (۱۳) ډیمونه جوړ کړیدی چه په هغے کښې د ټولو نه لوئی ډیم (اتاترك ډیم) دے چه د دنیا په لویو ډیمونو کښې شمار دے۔ د هغے د ډکولو دپاره د دریائے فرات د یوے میاشتے پورے مکمل په هغے کښې اُوبه راجمع کول به ضروری وی، نو پدے طریقه به د شام او عراق اُوبه مکمل بندیږی۔ دا صورتِ حال نهٔ صرف د عراق او شام دپاره دے بلکه نورو خلیجی ریاستونو دپاره هم د سختو مشکلاتو سبب دے۔ ترکی دا اُوبه د خپل سیاسی دباؤ دپاره استعمالوی۔ بلکه حقیقت دا دے چه د اسرائیلو د خوشحالولو دپاره ترکی ے دینه حکومت داسے کارونه کوی۔

دا خبره ډِیرے واضحه وی چه دا ټولے منصوبے د دجال د عالمی ادارو په تعاون سره مکمل شویدی۔ پدے وخت کښې په دریائے فرات کښې اُوبه ډیرے کمے وی۔ عام طور سره په هغے کښې د دوو نه تر درے میټر پورے اُوبه وی۔

ارطاۃ رحمه الله وائی چه د دجال د راوتلو یوه نښه دا ده چه د مشرق نه به هوا راشی چه نهٔ به گرمه وی او نهٔ به یخه۔ دا هوا به د اسکندریه بت راګوزار کړی، د مغرب او شام زیتون به پریکړی او فرات او چینے او نهرونه به اُوچ کړی او ددے په وجه سره به د ورځو او میاشتو اوقات او د سپوږمۍ اوقات هیر شی۔

محقق احمد بن شعبان وائی : ددے سند د (لابأس بهٖ) په درجه

کښې دے۔

(کتاب الفتن ویرمودا تکون اور دجال ص (۱۲٦) لعاصم عمر)

ددے احادیثو نه دا خبره واضحه شوه چه د دجال د راوتو په وخت به اُویه یو عالمی کموالے پیدا کوی۔ بارانونه به کمیږی اوپه کوم کال چه دجال راځی نو بارانونه به بالکل نۀ کیږی۔ پدے آخری روایت کښې چه کومه هواء ذکر شویده نو پدے هواء سره به چینے او نهرونه او دریابونه اُوچیږی، د چینو د اُوچولو دپاره د ورلډ بینك د طرف نه منصوبے جاری دی، په صوبه سرحد او د آزاد کشمیر په غرونو علاقو کښې دا خبره اُولیدلے شوه چه د ورلډ بینك په پیسو چه کومو چینو باندے تینکۍ لګیدلی دی نو هغه چینے ډیرے زر اُوچے شوے۔ او د مقامی خلقو په پیسو سره چه کومو چینو باندے تینکۍ لګیدلی دی نو د هغه چینو حالت څه قدرے بهتر دے۔

(برمودا تکون)۔

د پاکستان د دریابونو د اُوچولو دپاره بهارت په دریائے جیلم او نیلم باندے (٦٢) واړه او غټ ډیمونه جوړول شروع کړیدی۔ او په دریائے سندھ باندے (۱۳) ډیمونه جوړیږی۔ د عراق او شام اُوبه د ترکی حکومت په ذریعه بندولے شی۔ د فلسطین او اُردن اُوبه اسرائیلو بندے کړیدی، د مصر د نیل اُوچولو دپاره تیاریانے جاری دی۔ د عالِم اسلام په خلاف د اُوبو په محاذ باندے دا جنګ ورلډ بینك سنبالوی۔ همدے ادارے ترکی، اسرائیل او بهارت ته پدے دریابونو باندے د ډیمونو جوړولو دپاره پیسے ورکړیدی۔ (برمودا تکون

اوردجال ص:۱۷۶)

## ۱۲- کوکب ذو ذنب به پیدا شی

یعنی د لکئ والا ستورے به پیدا شي۔

ابن ابی ملیکه وائی : یوه ورځ زه د سحر په وخت عبد الله بن عباس خوا ته ورغلم، هغه راته اُوفرمایل : بیګاه شپه ما توله شپه خوب نهٔ دے کړے، ما اُووئیل : ولې ؟ هغه اُوفرمایل : د لکئ والا ستورے رابښکاره شویدے، زه اُویریدم چه دجال به راغلے وی۔
[مستدرك د حاكم : ۸٤۱۹] وقال : صحيح على شرط الشيخين ووافقه الذهبي]

**تبصره** : د لکئ والا ستوری نه روستو یوه رڼړا ښکاره کیږی چه په لیدلو کښې د لکئ په شان په نظر راځی نو ځکه ورته د لکئ والا ستورے وائی۔

دا ستورے په (۲۵) مارچ سنه (۱۹۹۶ء) کښې واضح رابښکاره شوے وو۔ ماهرین د فلکیاتو وئیلی وو چه ددے ستوری عمر لس زره کاله دے۔ په جنوری (۲۰۰۷ء) کښې هم دا ستورے لیدلے شوے وو۔د امریکی د خلائی تحقیقاتی ادارے (ناسا) سائنسدانان پدے ستوری باندے د موجود ګرد په ذراتو باندے کیمیاوی تجربه کوی او خلائی ګاړے ئے ددے سره په جنګولو کامیابه تجربه کړیده۔ د هغوی په قول پدے کښې په ډیر مقدار کښې کیمائی مادے موجودی دی۔ (برمودا تکون ص:۱۲۵)

دا وو هغه علامات چه د دجال د راتلو نه مخکښې به په دنیا کښې

رانبکاره کیږی۔ او دا جنګونه به د مهدی په زمانه کښ د نصاراؤ سره اول او بیا د یهودیانو سره راځی او په مینځ کښ به دجال راځی او بیا به د هغه د قتال دپاره عیسٰیؑ راکوزیږی۔

## اهم سوال: آیا جدید اسلحه به کار پریدی ؟۔

په احادیثو کښ دا چرته صراحةً نهٔ دی راغلی چه جدید اسلحه به کار پریدی او دوباره به په زړه طریقه سره جنګونه شروع شی البته په بعض روایاتو کښ د زوړ ترتیب مطابق د اسلحو او سامانونو نومونه راغلی دی لکه مخکښ حدیث د صحیح مسلم کښ تیر شو چه مسلمانانو به خپلې توری د زیتون ونه پوری زوړندې کړې وی۔ دارنګه په بعض روایاتو کښ (مخکښ ذکر شو) چه مسلمانان به لس کسان په اسونو باندې د جاسوسئ دپاره اُولیږی۔ دارنګه عیسی ؑ به دجال په خپله نیزه اُووهی او په هغې کښ به مسلمانانو ته د هغه وینه اُوښائی۔ نو ددې نه بعض علماؤ دا استدلال کړیدې چه جدید اسلحه به ختمه شی او بیرته به د تورو او اسونو په ذریعه جنګونه شروع شی۔

لیکن نورو اهل علمو وئیلی دی چه کوم روایاتو کښ د تورو تذکره راغلې ده نو د هغې نه مراد د خپلې خپلې زمانې اسلحه ده او بعینه توره نهٔ ده مراد۔ دارنګه په هر جنګ کښ توره هم پکار راځی ځکه چه پیش قوزې او غټې غټې چړې په هر دور کښ استعمالیږی ورسره نور اسلحه جات به هم وی۔ دغه شان اسونه

په هر جهاد کښې پکار راځی، مجاهدین پرے اُوس هم کارونه کوی۔ دغه شان د مشین په سر کښې چاره اچول شی چه هغه برچه او نیزه ده نو کیدے شی چه عیسیٰ ؑ به دجال په دغه نیزه سره اُووهی۔

البته دا هم ممکن ده چه د قسطنطینیه د فتح نه مخکښې یو عظیم جنگ راپورته شی او په هغې کښې تمام جدید اسلحه جات تباه او برباد شی او ایتهمونه خلاص شی چه د هغې په وجه ټولے جدیدے اسلحے او د هغې فیکټریانے تباه شی او بیرته خلق تورو او نیزو راخستو ته محتاج شی کوم چه قدیمه راروانه طریقه ده، لیکن دا خبره په درجه د ګمان کښې ده، یقین پدے باندے هم نشته۔ که دا صورت شی نو بیا به دغه احادیث په خپل ظاهر باندے وی او هیڅ اشکال به پکښې نهٔ وی۔ والله تعالیٰ اعلم وعلمه بما کان وما یکون اتم واحکم۔

## دجال به کوم ځائے راوځی :

ابوبکر صدیق ؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اَلدَّجَّالُ یَخْرُجُ مِنْ اَرْضٍ بِالْمَشْرِقِ یُقَالُ لَهَا خُرَاسَانُ یَتْبَعُهُ اَقْوَامٌ کَأَنَّ وُجُوْهُهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ] [ترمذی، کتاب الفتن باب ما جاء من این یخرج الدجال (۲۲۳۷) مسند احمد (۵/۱) بسند صحیح]

(دجال به د مشرق د هغه زمکے نه راوځی چه هغې ته خراسان وئیلے شی۔ د هغه تابعدار به داسے قومونه وی چه د هغې مخونه به د ټکولے شوو ډالونو په شان چخپت وی)۔

یعنی تپنړ تپنړ مخونه به ئے وی۔ لکه ددے تشریح به روستو راشی۔

○ د فاطمه بنت قیس رضی الله عنها په روایت کښ دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اَلَا اِنَّهٗ فِیْ بَحْرِ الشَّامِ اَوْ بَحْرِ الْیَمَنِ لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا وَاَوْمَأَ بِیَدِهٖ اِلَی الْمَشْرِقِ]

[مسلم، کتاب الفتن باب قصة الجساسة (۲۹۴۲) ابن ماجه (۳۰۴۵) ترمذی (۲۲۵۳) ابوداود (۴۳۲۵) النسائی [۳۵۴۷]

(خبردار! دجال د شام یا د یمن په سمندر کښ دے۔ نۀ بلکه مشرق طرف ته دے، څه عجیب دے دا مشرق نه راتلونکے شے؟ څه عجیب دے د مشرق نه راتلونکے شے؟ او اشاره ئے مشرق ته اُوکړه)۔

○ نواس بن سمعان رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اِنَّهٗ خَارِجٌ خَلَّةً بَیْنَ الشَّامِ وَالْعِرَاقِ فَعَاثَ یَمِیْنًا وَعَاثَ شِمَالًا]

[مسلم، کتاب الفتن باب ذکر الدجال : (۲۹۳۷) ترمذی [۲۲۴۰]

(دجال به د شام او د عراق د مینځنۍ شګلنے علاقے نه راوځی، نو ښی او ګس طرف ته به د فساد دپاره ګرځی)۔

○ انس بن مالك نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[یَخْرُجُ الدَّجَّالُ مِنْ یَهُوْدِیَّةِ اَصْبَهَانَ مَعَهٗ سَبْعُوْنَ اَلْفًا مِنَ الْیَهُوْدِ]

[مسلم، کتاب الفتن (۲۹۴۴)

(دجال به د اصبهان علاقے د یهودیانو نه راښکاره کیږی او د هغه سره به اوویا زره یهودیان ملګری وی)۔

**تبصره:** د مخکنو روایاتو په ظاهره کښې تعارض معلومیږی چه په بعضو کښې دی چه دجال به د مشرق نه یعنی خراسان نه راوځی او په بعضو کښې دی چه د عراق او د شام د مینځنۍ لارے نه به راځی۔ لیکن په حقیقت کښې تعارض نشته۔ وجه دا ده چه دجال به د مشرق جانب نه راوځی او په مشرق کښې به د خراسان نه راځی او په خراسان کښې به د اصبهان علاقے د یهودیانو نه راځی او بیا به حجاز مقدس ته راتلو دپاره د شام او د عراق مینځنۍ شګلنه علاقه استعمالوی او دے په لاره به اُوځی او مکے او مدینے ته به ځان رسوی لیکن مکے او مدینے ته به نشی داخلیدے او بیرته چه د مدینے نه راواپس شی نو عیسی ﷺ به ئے قتل کړی۔ نو آخری مقام د دجال به فلسطین او د هغے ماحول وی۔

## د دجال ملګری او لخکر به کوم خلق وی؟

د انس بن مالك ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل:

[يَتْبَعُ الدَّجَّالَ مِنْ يَهُوْدِ اَصْبَهَانَ سَبْعُوْنَ اَلْفًا عَلَيْهِمُ الطَّيَالِسَةُ]

[مسلم کتاب الفتن باب فی بقیة من احادیث الدجال: (٢٩٤٤)

(دجال پسے به (د ایران د ښار) اصفهان نه اویا (۷۰۰۰۰) زره یهودیان روان وی چه تورے (یا شنے) څادرے به ئے د ځان نه تاؤ کړی وی)۔

مخکښې ذکر شو چه دجال به د خراسان نه راوځی او د هغه پسے به داسے اقوام روان وی چه مخونه به ئے داسے وی لکه وهلے شوی

ډهالونه یعنی تپنړ تپنړ۔

د طبرانی په یو روایت کښې راغلی دی چه هیثمی ورته په مجمع الزوائد کښې صحیح وئیلے دے چه ((د دجال اول تابعدار به زنانه وی))۔

○ د انس بن مالك ﷺ نه روایت دے چه نبی ﷺ اُوفرمایل :

[لَيْسَ مِنْ بَلَدٍ إِلَّا سَيَطَؤُهُ الدَّجَّالُ إِلَّا مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةَ لَيْسَ لَهُ مِنْ نِقَابِهَا نَقْبٌ إِلَّا عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ صَافِّيْنَ يَحْرُسُوْنَهَا ثُمَّ تَرْجُفُ الْمَدِيْنَةُ بِأَهْلِهَا ثَلَاثَ رَجْفَاتٍ فَيُخْرِجُ اللّٰهُ كُلَّ كَافِرٍ وَمُنَافِقٍ]

[بخاری کتاب فضائل المدینة (۱۸۸۱) مسلم [۲۹٤۲]

(داسے یو ښار نشته چه دجال هغه د خپو لاندے نکړی سوی د مکے او مدینے نه ځکه چه ددے په هره لاره باندے ملائك صف تړونکی ولاړ دی چه ددے حفاظت کوی، بیا به مدینه باندے درے ځل زلزله راشی چه الله به د هغے نه هر کافر او منافق رابهر کړی)۔

○ عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[يَنْزِلُ الدَّجَّالُ فِيْ هٰذِهِ السَّبْخَةِ بِمَرِّقَنَاةٍ فَيَكُوْنُ أَكْثَرَ مَنْ يَّخْرُجُ إِلَيْهِ النِّسَاءُ حَتّٰى إِنَّ الرَّجُلَ لَيَرْجِعُ إِلٰى حَمِيْمِهٖ وَإِلٰى أُمِّهٖ وَابْنَتِهٖ وَأُخْتِهٖ وَعَمَّتِهٖ فَيُوْثِقُهَا رِبَاطًا مَخَافَةَ أَنْ تَخْرُجَ إِلَيْهِ]

[مسند احمد (٦٧/٢) المعجم الکبیر [۱۳۱۹۷]

(دجال به د مرقناة په دلدلی زمکه باندے پړاؤ اچوی نو هغه طرف ته به د ټولونه زیاتے زنانه راوځی تردے چه یو سړے به خپله ښځه، خپله مور او خپله لور او خپله خور او خپله ترور وغیره

طرف ته راواپس شي او هغه به په پرو باندے اُوتړی ددے یرے نه چه هسے نه چه د دجال سره ملاو شي)۔

**تبصره :** د مخکنو احادیثو نه دا معلومه شوه چه د دجال اصل لښکر به یهودیان وي ځکه چه دجال خپله د یهودیانو نه پیدا دے، دارنګه د دجال ملګرتیا به هغه خلق کوي او د هغه په فوج کښې به شاملیږي چه د هغوی مخونه د وهلے شوي ډهالونو په شان وي، یعنی تیټرمخي وي او کیدے شي چه دا خلق د چین، جاپان، کوریا او روس او د بعض علاقو د افغانستان نه وي ځکه چه د دوی مخونه په همدے طریقه دي۔ او کافران او منافقان به هم پدے لښکر کښې شاملیږي او ددے فتنے زیات ښکار کیدونکي به ښځے وي ځکه چه زنانه دجالي فتنو ته ډیر وړاندے کیږي او په هغوی باندے به زیات اثر کوي ځکه چه د دجال سره به د زیب او زینت سامان او خوراکونه او ظاهري مزے وي، جعلي جنت او جهنم به ئے جوړ کړے وي۔

دارنګه هغه بد نصیبه مسلمانان به هم ورسره ملګري کیږي چه د فکري ارتداد ښکار شوي وي لکه ډیر سکالران، ډاکټران، پروفیسران او نام نهاد تعلیم یافته چه د دین اصلي حلیه او شکل ورانولو کوشش کوي، دارنګه کوم خلق چه د مال او اولاد په فتنه کښې ننوتي وي، د حرام خورئ او سودونو نه توبه نهٔ اُوباسي، د مونځونو او جَمعو پابندي نهٔ کوي او هغه خلق چه عیش پرستئ او د دنیا مزو د الله تعالیٰ په لاره کښې د جهاد کولو نه منع کړي وي او د جهاد مخالفین وي او ایمان والا ورته سپك او د کافرانو حالت او

تـمـدن ورتـه تـرقی ښکاری او د کافرانو نه متأثر وی۔ الله تعالیٰ دې مونږ ته دداسې حالت نه امن راکړی آمین۔

## د دجال شکل او صورت :

د عبـد الله بـن عـمـر رضـی الله عـنهما نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [اَعْـوَرُ عَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّهَا عِنبَةٌ طَافِيَةٌ] [بخاری کتاب الفتن باب ذکر الدجال [۷۱۲۳]

(د دجال ښئ سترګه به کانړئ وی، د هغه سترګه ګویا کښ داسې ده لکه نیغ راوتلے د انګور دانه ده)۔

۲– د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دے چه یو ځل رسول الله ﷺ خپل خوب بیان کړو :

[فَـاِذَا رَجُـلٌ جَسِيمٌ اَحْمَرُ جَعْدُ الرَّأْسِ اَعْوَرُ الْعَيْنِ كَاَنَّ عَيْنَهٗ عِنبَةٌ طَافِيَةٌ قَالُوْا : هٰذَا الدَّجَّالُ اَقْرَبُ النَّاسِ بِهٖ شَبَهًا ابْنُ قَطَنٍ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ]

[بخاری کتاب الفتن باب ذکر الدجال [۷۱۲۸]

(نـو نـاڅاپه زما نظر په یو پیړ (غټ بدن والا) سړی باندې اُولګیدو چـه رنګـ ئـې سـور وو، د هـغـه د سر ویښته کوړئ وو، په یوه سترګه کـانړې وو ګویا کښ د هغه سترګه د انګور نیغه راوتلے دانه ده، خلقو اُووئیـل : دا دجال دے، د هغه شکل د عبد العزی بن قطن سره مشابه وو چه دا د خزاعه قبیلے یو سړے وو)۔

۳– د انس ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اَلـدَّجَّـالُ مَمْسُوْحُ الْعَيْنِ مَكْتُوْبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ ثُمَّ تَهَجَّاهَا ك، ف ر، يَقْرَأُهٗ

كُلُّ مُسْلِمٍ] [مسلم كتاب الفتن باب ذكر الدجال [۲۹۳۳]

(دجال کانړے دے، د هغه د دوارو سترګو په مینځ (تندی) باندے به ئے کافر لیکلے وی بیا رسول الله ﷺ هغه بیل بیل کړل (ك،ف،ر) چه دا به هر مسلمان لوستلے شی)۔

٤- په یو روایت کښ دا هم راغلی دی: ((هر مسلمان به ئے لوستلے شی برابره ده چه لوستونکے وی او که جاهل وی))

٥- د حذیفه رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل:

[اَلدَّجَّالُ اَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُسْرٰى جَفَالُ الشَّعْرِ مَعَهٗ جَنَّةٌ وَنَارٌ فَنَارُهٗ جَنَّةٌ وَجَنَّتُهٗ نَارٌ]

[مسلم كتاب الفتن [۲۹۳٤]

(دجال په ګسه سترګه کانړے دے، ګڼرو ویښتو والا به وی او د هغه سره به جنت او جهنم وی د هغه اُور به (په حقیقت کښ) جنت وی او د هغه جنت به (په حقیقت کښ) اُور وی)۔

٦- د هشام بن عامر رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل:

[اِنَّ رَأْسَ الدَّجَّالِ مِنْ وَرَائِهٖ حُبُكٌ حُبُكٌ فَمَنْ قَالَ اَنْتَ رَبِّيْ افْتُتِنَ وَمَنْ قَالَ كَذَبْتَ رَبِّيَ اللّٰهُ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ فَلَا يَضُرُّهٗ]

[المعجم الكبير (۱۷٥/۲۲) مسند احمد (۲۸/٤) مجمع الزوائد [٦٥٨/۷]

(د دجال سر به د روستو طرف نه لارے لارے وی (د وجه د سخت تاویدو او کوړیٔ کیدونه)۔ چا چه دا اُووئیل چه ته زما رب ئے نو هغه به په فتنه کښ اخته شی او چا چه اُووئیل چه ته دروغجن ئے، زما رب الله دے، په هغه باندے ما ځان سپارلے دے نو هغه ته به هیڅ نقصان نشی رسولے)۔

۷– د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی ﷺ د دجال په باره کښ اُوفرمایل : [اَعْوَرُ هِجَانٌ، اَزْهَرُ كَاَنَّ رَاْسَهٗ اَصَلَةٌ، اَشْبَهُ النَّاسِ بِعَبْدِ الْعُزّٰی بْنِ قَطَنٍ] [ابن ابی شیبة (۸/٢٤٦) مسند احمد (۱/۲٤۰)]

(دجال به کانړے، تلك سپین او پرقیدونکے وی، د هغه سر به د اَفـغـی (چمچه مار) په شان وی، هغه به په خلقو کښ د عبد العزی بن قطن سره زیات مشابه وی)۔

۸– په یو روایت کښ دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[وَهُوَ اَعْوَرُ عِيْنِهِ الْيُسْرٰى، بِعَيْنِهِ الْيُمْنٰى ظَفَرَةٌ غَلِيْظَةٌ مَكْتُوْبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِمَا كَافِرٌ]

[طبرانی کبیر (٦٤٤٥) مسند احمد (٥/۲۸۱)]

(د دجال گسه سترګه به کانړۍ وی او ښۍ سترګه به ئے د غوښے د ټکړے په شان راوتلے وی او د هغه د دواړو سترګو په مابین کښ به (کافر) لیکلے وی)۔

۹– په یو روایت کښ دا الفاظ دی :

[وَاِنَّهٗ اَعْوَرُ مَمْسُوْحُ الْعَيْنِ الْيُسْرٰى عَلَيْهَا ظَفَرَةٌ غَلِيْظَةٌ خَضْرَاءُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ عَيْنُهُ الْيُمْنٰى كَاَنَّهَا عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ لَيْسَ بِنَاتِئَةٍ وَلَا حَجْرَاءَ جَفَالُ الشَّعْرِ]

[طبرانی کبیر، مسند احمد بحواله قصة المسیح الدجال للالبانی ص (۱۳۱)]

(دجال به کانړے وی، د هغه گسه سترګه به ورانه شوی وی او د سترګے په ځائے به د نوك په شان سخته غوښه وی داسے به وی لکه د شین رنګ والا پرقیدونکے ستورے، نۀ به ډیره راوتے وی او نۀ به ډیره ډوبه وی، پراګنده ویښته به ئے وی)

۱۰– عباده بن صامت وائی رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اِنِّیْ حَدَّثْتُکُمْ عَنِ الدَّجَّالِ حَتّٰی خَشِیْتُ اَنْ لَّا تَعْقِلُوْا اِنَّ الْمَسِیْحَ الدَّجَّالَ رَجُلٌ قَصِیْرٌ اَفْحَجُ جَعْدٌ اَعْوَرُ مَطْمُوْسُ الْعَیْنِ لَیْسَ بِنَاتِئَةٍ وَلَا حَجْرَاءَ فَاِنْ اُلْبِسَ عَلَیْکُمْ فَاعْلَمُوْا اَنَّ رَبَّکُمْ لَیْسَ بِاَعْوَرَ]

[ابوداود کتاب الملاحم باب خروج الدجال (۴۳۱۲)

(ما تاسو ته د دجال په باره کښی حدیثونه بیان کړیدی، ما ته خطره ده چه تاسو به هغه اُونهٔ پیژندے شی ؟ (نو واورئ) مسیح دجال به وړکی (لنډ) قد والا سړے وی، د هغه ویښته به کوړئ وی، کانړے به وی، او یوه سترګه به ئے ورانه (هموار) شوی وی، نهٔ به ډیره راوتلی وی او نهٔ به ډیره ژوره شوی وی نو که ستاسو دده په باره کښی شك شو نو (دا یاد ساتئ) چه ستاسو رب کانړے نهٔ دے)۔

۱۱- د مسند احمد او ابن حبان په صحیح روایت کښی دی :

[اَلدَّجَّالُ عَیْنُهٗ خَضْرَاءُ کَالزُّجَاجَةِ]

(د دجال سترګه به شنه وی لکه د شیشے په شان)۔

**تبصره** : ددے روایاتونه مونږ ته د دجال متعلق پوره شکل او صورت ښکاره شو چه دجال د ټولو ظاهری او باطنی خرابیانو مجموعه ده، د هغه رنګ، ویښته، جسم هر شے داسے دے چه انسان هغه ته ګوری نو د هغه نه به نفرت کوی لیکن یهودی ادارے د دجال دا عیبونه داسے جوړوی او امت ته ئے پیش کوی چه خلق ئے ښه اُوګڼړی، د دجال د سترګے او د ویښتو په باره کښی د هغوی مسلسل محنت جاری دے، بد بد شکلونو والا کارټونونه جوړوی او ماشومان د اُوس نه د ګنده شکلونو سره اموخته کوی۔

د مختلف کمپنیانو په اشتهاراتو باندے د سترگے نشان تاسو لیدلے شیٔ، کله دا سترگه بهر راوتلی وی او کله د سترگے دننه حصه سپینه دانه خودلے شی، په کیمرو، د گاړو په هیډ لائټونو، په نورو گاړو موټرو، موبائیلونو او په بے شماره مصنوعاتو باندے د سترگے نخه جوړولے شی۔

د جیو ټی وی په سکرین چه کوم د (ج) نشان راځی دا هم د سترگے په شان دے۔

یهودیانو ددے سترگے په باره کښې دا خبره مشهوره کړیده چه دا د بد نظر نه بچ کونکے سترگه ده۔ او ډیرو مسلمانانو ټی وی کتونکو هم اُوس ددے سترگے دومره اشتهارات کوی چه په خپلو تسبیحو کښې هم دا شکل جوړوی۔ دا شرکی او دجالی سترگه ده۔ (برمودا تکون اور دجال ص ۱۳۰)

بیا دلته دا اشکال ذهن ته راځی چه بعض روایاتو نه معلومه شوه چه کسه سترگه به ئے کانړئ وی او د بعضو نه معلومه شوه چه ښیٔ سترگه به ئے کانړئ وی ؟

ددے جواب دا دے چه د دجال دواړه سترگے عیبجنے دی یوه سترگه ئے بیخی وتلے ده او بله سترگه ئے هم عیبجنه ده نو هر یو ته عوراء وئیل صحیح دی ځکه چه په عربی ژبه کښې عوراء عیبجنے سترگے ته وئیلے شی۔ نو د دجال کسه سترگه به بالکل ورانه او همواره او اخیړ شوی وی او ښیٔ سترگه به ئے د انګور د دانے په شان نیغه راوتلے وی۔

د شپږم روایت نه معلومه شوه چه د دجال د سر روستنۍ حصه به حبك حبك وی۔ ددې یوه معنیٰ دا ده چه ویښته به ئې دومره سخت کوږۍ وی او زیږهٔ وی او تاو شوی به وی چه مینځ مینځ کښې به ئې لارې لارې ښکاری۔ او داسې شکل ډیر بد ښکاری چه بنده پسې د روستو نه ویښته راپورته شوی وی او د شا نه لارې لارې معلومیږی۔ نو دجال به ډیر زیږ او کوږۍ ویښتو والا وی۔

د دریم روایت نه دا خبره معلومه شوه چه د دجال په تندی به ئې کافر لفظ په حروف هجاء سره لیکلی وی یعنی (ك۔ف۔ ر) چه دا به هر مؤمن مسلمان لوستلې شی که خوانده وی او ناخوانده او پدې کښې د ایمان والو دپاره خوشحالی ده چه هغوی ته الله تعالیٰ دا کافر ښائی دې دپاره چه مؤمن مسلمان دده د فتنو او جادوګرۍ نه محفوظ شی او په دهٔ باندې ایمان رانهٔ وړی او هغه ته تسلیم نشی۔ او کافر له الله تعالیٰ دا طاقت نهٔ دې ورکړې چه دغه لفظ اُووینی اګرکه د آکسفورډ یونیورسټۍ نه فارغ وی، دا د ایمان برکت او د شرك او کفر او منافقت نحوَست دې، چه ایمان والو ته به دغه الفاظ ښکاری او کافران به ترې ړاندهٔ وی، او یو روایت نه دا معلومه ده چه څوك د دجال عمل بد ګنړی نو هغه به ئې لوستلې شی۔

[مسند احمد ۲۳۷۲۲ بسند صحیح]

دې نه معلومه شوه چه ایمان والو ته الله تعالیٰ یو غیبی او باطنی بصیرت او عقلمندی ورکوی چه هغه کافر کښې نهٔ وی۔

[وَاتَّقِ فِرَاسَةَ الْمُؤْمِنِ فَإِنَّهُ يَنْظُرُ بِنُوْرِ اللهِ] (د مؤمن فراست (زیرکتیا) نه خبر شه ځکه چه دا د الله په رڼرا سره لیدل کوی)۔

## دجال به په ټوله دنیا گرځی سویٰ د مکے او مدینے نه :

د ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[لَايَدْخُلُ الْمَدِيْنَةَ رُعْبُ الْمَسِيْحِ وَلَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ اَبْوَابٍ عَلٰى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ]

[بخاری، کتاب الفتن باب ذکر الدجال (۷۱۲٦)

(د مدینے خلق به د مسیح (دجال) نه په رعب کښں نهٔ وی، په هغه وخت کښں به د مدینے اُووه دروازے وی او په هره دروازه به دوه ملائك پهره ورکوی)۔

او په یو بل روایت کښں راغلی دی چه د مدینے په لارو به ملائك ولاړ وی تورے به ورسره وی چه دجال ورنزدے کیږی نو هغوی به ورته توره راپورته کوی نو دجال به ناامیده واپس شی۔

او په مدینه کښں چه د دجال کوم ملگری دی کافران او منافقان نو هغه به الله تعالیٰ د مدینے د زلزلے په وجه رابهر کړی او د دجال سره به ملگری شی۔ دا هم یو امتحان دے چه دوی دپاره زلزله سبب د هلاکت اُوگرځیده۔

## مسلمان له پکار دی چه د دجال نه وړاندے شی :

د عمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[مَنْ سَمِعَ بِالدَّجَّالِ فَلْيَنْاَ عَنْهُ فَوَ اللهِ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَاْتِيْهِ وَهُوَ يَحْسِبُ اَنَّهُ مُؤْمِنٌ

فَيَتْبَعُهُ مِمَّا يُبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ اَوْ لِمَا يُبْعَثُ بِهِ مِنَ الشُّبُهَاتِ]

[ابو داود، ۴۳۱۹]

(څوك چه د دجال خبر واوری نو هغه نه دِے جدا شی (یعنی د هغه خوا له دِے نهٔ راځی) قسم په الله ! کله چه یو سړے د هغه خوا ته راشی نو دا به دا ګمان کوی چه زه مؤمن یم (لیکن) هغه ته چه کومے شبهے ورکړے شویدی نو د هغے په لیدو سره (به دا مؤمن) د دجال تابعداری شروع کړی) دا ډیره لویه فتنه ده۔

## د دجال طاقت

## د دجال سره به جنت او جهنم وی ؟۔

۱- مخکښ حدیث د حذیفهؓ تیر شو چه دجال سره به جنت او اُور وی نو د هغه اُور به (په حقیقت کښ) جنت وی او د هغه جنت به (په حقیقت کښ) اُور وی) (مسلم) •

۲- رسول الله ﷺ د دجال په باره کښ فرمائی : د هغه سره به اُور او اُوبه وی، اُور به ئے یخے اُوبه وی او اُوبه ئے اُور وی۔ (صحیح البخاری بروایة حذیفه)۔

۳- د مغیره بن شعبهؓ په حدیث کښ دی : ((د هغه (دجال) سره به د ډوډۍ غر وی او د اُوبو دریاب وی (یعنی د هغه سره به اُوبه او خوراکونه په ډیر مقدار کښ وی) نبی ﷺ فرمایلی دی : ددے خبرو دپاره هغه ډیر حقیر (سپك) دے لیکن الله به هغه ته ددے اجازت ورکوی (دے دپاره چه په خلقو باندے امتحان اُوشی چه آیا

دوی په الله یقین لری او که په دجال)

[صحیح البخاری۹/۲٤٤]

## د دجال فتنے :

د حذیفه ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اِنَّ مَعَ الدَّجَّالِ اِذَا خَرَجَ مَاءً وَنَارًا فَاَمَّا الَّذِیْ یَرَی النَّاسُ اَنَّهَا النَّارُ فَمَاءٌ بَارِدٌ وَاَمَّا الَّذِیْ یَرَی النَّاسُ اَنَّهُ مَاءٌ بَارِدٌ فَنَارٌ تُحْرِقُ فَمَنْ اَدْرَكَ مِنْكُمْ فَلْیَقَعْ فِی الَّذِیْ یَرٰی اَنَّهَا نَارٌ فَاِنَّهُ عَذْبٌ بَارِدٌ] [بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب ما ذکر عن بنی اسرائیل (۳٤٥۰) ومسلم (۲۹۳٤)

(کله چه دجال راښکاره شی نو د هغه سره به اُوبه او اُور وی، خلق چه کوم شے اُور وینی نو هغه به یخے اُوبه وی او کوم چه خلق اُوبه گنړی هغه به سیزونکے اُور وی، نو تاسو نه چه څوك پدے فتنه کښې اختـه شی نو هغه دے په هغه کښې داخل شی چه کوم اُور ښکاره کیږی ځکه چه دا به خوږے اُوبه وی)۔

۲– د نواس بن سمعان ﷺ نه روایت دے :

[ذَکَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ الدَّجَّالَ ذَاتَ غَدَاةٍ فَخَفَّضَ فِیْهِ وَرَفَّعَ حَتّٰی ظَنَنَّاهُ فِیْ طَائِفَةِ النَّخْلِ فَلَمَّا رُحْنَا اِلَیْهِ عَرَفَ ذٰلِكَ فِیْنَا فَقَالَ : مَا شَاْنُکُمْ ؟ قُلْنَا یَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! ذَکَرْتَ الدَّجَّالَ غَدَاةً فَخَفَّضْتَ فِیْهِ وَرَفَّعْتَ حَتّٰی ظَنَنَّاهُ فِیْ طَائِفَةِ النَّخْلِ فَقَالَ : غَیْرُ الدَّجَّالِ اَخْوَفُنِیْ عَلَیْکُمْ اِنْ یَّخْرُجْ وَاَنَا فِیْکُمْ فَاَنَا حَجِیْجُهٗ دُوْنَکُمْ وَاِنْ یَّخْرُجْ وَلَسْتُ فِیْکُمْ فَامْرُؤٌ حَجِیْجُ نَفْسِهٖ وَاللّٰهُ خَلِیْفَتِیْ عَلٰی کُلِّ مُسْلِمٍ اِنَّهٗ شَابٌّ قَطَطٌ عَیْنُهٗ طَافِئَةٌ کَاَنِّیْ اُشَبِّهُهٗ بِعَبْدِ الْعُزّٰی بْنِ قَطَنٍ فَمَنْ اَدْرَکَهٗ مِنْکُمْ فَلْیَقْرَاْ عَلَیْهِ فَوَاتِحَ سُوْرَةِ الْکَهْفِ اِنَّهٗ خَارِجٌ خَلَّةً بَیْنَ الشَّامِ وَالْعِرَاقِ فَعَاثَ یَمِیْنًا وَعَاثَ

شِمَالاً يَا عِبَادَ اللّٰهِ فَاثْبُتُوا ! قُلْنَا : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! وَمَا لُبْثُهٗ فِى الْاَرْضِ؟ قَالَ : اَرْبَعُوْنَ يَوْمًا يَوْمٌ كَسَنَةٍ وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ وَسَائِرُ اَيَّامِهٖ كَاَيَّامِكُمْ قُلْنَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! فَذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِىْ كَسَنَةٍ اَتَكْفِيْنَا فِيْهِ صَلَاةُ يَوْمٍ؟ قَالَ : لَا، اُقْدُرُوْا لَهٗ قَدْرَهٗ، قُلْنَا: يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! وَمَا اِسْرَاعُهٗ فِى الْاَرْضِ؟ قَالَ: كَالْغَيْثِ اسْتَدْبَرَتْهُ الرِّيْحُ فَيَأْتِىْ عَلَى الْقَوْمِ فَيَدْعُوْهُمْ فَيُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَيَسْتَجِيْبُوْنَ لَهٗ فَيَأْمُرُ السَّمَاءَ فَتُمْطِرُ وَالْاَرْضَ فَتُنْبِتُ فَتَرُوْحُ عَلَيْهِمْ سَارِحَتُهُمْ اَطْوَلَ مَا كَانَتْ ذُرًى وَاَسْبَغَهٗ ضُرُوْعًا وَاَمَدَّهٗ خَوَاصِرَ ثُمَّ يَأْتِى الْقَوْمَ فَيَدْعُوْهُمْ فَيَرُدُّوْنَ عَلَيْهِ قَوْلَهٗ فَيَنْصَرِفُ عَنْهُمْ فَيُصْبِحُوْنَ مُمْحِلِيْنَ لَيْسَ بِاَيْدِيْهِمْ شَىْءٌ مِنْ اَمْوَالِهِمْ وَيَمُرُّ بِالْخَرِبَةِ فَيَقُوْلُ لَهَا اَخْرِجِىْ كُنُوْزَكِ فَتَتْبَعُهٗ كُنُوْزُهَا كَيَعَاسِيْبِ النَّحْلِ ثُمَّ يَدْعُوْ رَجُلاً مُمْتَلِئًا شَبَابًا فَيَضْرِبُهٗ بِالسَّيْفِ فَيَقْطَعُهٗ جِزْلَتَيْنِ رَمْيَةَ الْغَرَضِ ثُمَّ يَدْعُوْهُ فَيُقْبِلُ وَيَتَهَلَّلُ وَجْهُهٗ وَيَضْحَكُ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذٰلِكَ اِذْ بَعَثَ اللّٰهُ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَيَنْزِلُ عِنْدَ الْمَنَارَةِ الْبَيْضَاءِ شَرْقِىَّ دِمَشْقَ بَيْنَ مَهْرُوْذَتَيْنِ وَاضِعًا كَفَّيْهِ عَلٰى اَجْنِحَةِ مَلَكَيْنِ اِذَا طَاْطَاَ رَاْسَهٗ قَطَرَ وَاِذَا رَفَعَهٗ تَحَدَّرَ مِنْهُ جُمَانٌ كَاللُّؤْلُؤِ فَلَا يَحِلُّ لِكَافِرٍ يَجِدُ رِيْحَ نَفَسِهٖ اِلَّا مَاتَ وَنَفَسُهٗ يَنْتَهِىْ حَيْثُ يَنْتَهِىْ طَرْفُهٗ]

[مسلم كتاب الفتن باب ذكر الدجال (۲۹۳۷) والترمذی [۲۲٤۰]

(یوه ورځ نبی کریم ﷺ د دجال تذکره اُوکړه، نو هغه ئې سپك بیان کړو او د هغه فتنې ئې لوئی اُوګڼړلې تردې چه زمونږ دا ګمان شو چه شاید دجال به ددې کجورو وینو په طرف کښې راغلې وی بیا مونږ ماښام کښې هغه ته راواپس شو نو نبی ﷺ دا حالت په مونږ کښې اُوپیژندلو نو تپوس ئې اُوکړو چه څه چل دې؟ مونږ اُووئیل اې د الله رسوله! تاسو سحر د دجال په باره کښې خبره اُوکړه نو ... سې

گمان اُوکړو چه شاید دا به پدیے کجورو کښ وی۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : زه د دجال نه د لوئی فتنو نه په تاسو باندیے یریږم ؟ که دجال زما په ژوند کښ راوځی نو زه به د هغه په مینځ کښ رکاوټ جوړیږم او تاسو به د هغه د شر نه بچ کوم او که هغه زما نه روستو راووتو نو تاسو نه به هر شخص د خپل ځان نه (د هغه په خلاف) جګړه مار وی او الله تعالیٰ په هر مسلمان باندیے زما خلیفه او نګهبان دیے، دجال یو کوړیځ ویښتو والا ځوان دیے چه د هغه یوه سترګه به نیغه راوتلیے وی او هغه به د عبد العزی بن قطن مشابه وی۔ نو څوك چه ستاسو نه دجال اُووینی نو هغه دیے پریے د سورة الکهف اولنی آیتونه تلاوت کړی۔ دجال به د شام او د عراق د مینځنیځ شګلنیے لاریے نه راوځی، او ښی او ګس طرف ته به فساد خوروی۔ ایے د الله بندګانو ! ثابت قدم شیځ !۔ صحابه کرامو تپوس اُوکړو : دجال به په زمکه کښ څومره زمانه اُوسیږی ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : څلویښت ورځیے، چه یوه ورځ به د کال برابره وی او یوه ورځ به د یوے میاشتے برابر، او یوه ورځ به د یوے هفتے برابر وی او باقی ورځیے به د عامو ورځو په شان وی"۔

بیا صحابه کرامو تپوس اُوکړو : ایے د الله رسوله ! کومه ورځ چه د کال برابره وی په هغے کښ به مونږ مونځ څنګه ادا کوو ؟ آیا مونږ نه به په هغے کښ د یوے ورځے مونځ کافی کیږی ؟۔ وے فرمایل : نهٔ، بلکه تاسو به د هغے دپاره اندازه لګویځ۔ صحابه کرامو عرض اُوکړو : ایے د الله رسوله ! د هغه ګرځیدل به څنګه وی ؟ وے فرمایل : هغه

باران په شان (تیز به وي) چه هغه (باران) پسې روستو هوا دیکې ورکوي، نو هغه به یو قوم ته راشي، هغوي ته به د کفر دعوت ورکړي او هغه خلق به دغه دعوت قبول کړي، بیا به هغه آسمان ته حکم اُوکړي نو آسمان به باران را اُوورَوي، بیا به زمکې ته حکم اُوکړي نو زمکه به ګیاه ګانې رازرغون کړي، چه په هغې باندې د هغوي څاروي څرېږي چه د هغوي قوبونه به د مخکښې په نسبت اُوچت وي اوغولانزې به ئې فراخه وي او تشي به ئې اُوږده وي. بیا به دجال یو قوم ته راشي او د کفر دعوت به ورکړي لیکن هغوي به انکار اُوکړي نو دجال به د هغوي نه واپس لاړ شي او هغه خلق به په قحط او خشك سالي کښې واقع شي تردې چه د هغوي په لاسونو کښې به هیڅ مال او دولت پاتې نشي، دجال به یو ښورناکه او خرابې زمکې ته راشي هغې ته به حکم اُوکړي: اې زمکې ! خپلې خزانې راوباسه، نو د زمکې خزانې به د هغه سره داسې راجمع شي لکه څنګه چه د شهدو مچۍ د مچیو د مَلکې سره جمع کیږي. بیا به دجال یو ډك ځوان راوغواړي نو هغه به په توره سره دوه ټکړې کړي لکه څنګه چه ویشتلې شوې نښه دوه ټکړې کولې شي. بیا به هغه (دوباره ژوندي کولو سره) راوغواړي نو هغه ځوان به ورته په داسې حالت کښې راروان شي چه د هغه مخ به زلیږي او خاندي به. نو دا به پدې حالت کښې وي چه الله تعالیٰ به د دمشق ښار په ښي طرف کښې د سپینې منارې سره عیسیٰ ﷺ راکوز کړي چه دوه زیړې جامې به ئې اغوستې وي، خپل دواړه لاسونه به ئې د دوه ملائکو په اُوګو

باندے ایخودی وی، کله چه عیسیٰ ؑ خپل سر ښکته کړی نو خولے به ترے ځاځی او کله چه خپل سر پورته کړی نو د ملغلرو په شان دانے به ترے بهیږی نو هر کافر چه د عیسیٰ ؑ بوئی مونده کوی نو هغه به مړ کیږی او د هغه د ساه بوئی به هغه ځائے پورے رسیږی کوم ځائے ته چه د هغه نظر رسیږی)۔

۳- د ابوسعید خدری ؓ نه روایت دے چه یوه ورځ رسول الله اُوفرمایل :[يَأْتِي الدَّجَّالُ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْهِ اَنْ يَّدْخُلَ نِقَابَ الْمَدِيْنَةِ فَيَنْزِلُ بَعْضَ السِّبَاخِ الَّتِيْ تَلِي الْمَدِيْنَةَ فَيَخْرُجُ اِلَيْهِ يَوْمَئِذٍ رَجُلٌ وَهُوَ خَيْرُ النَّاسِ اَوْ مِنْ خِيَارِ النَّاسِ فَيَقُوْلُ: اَشْهَدُ اَنَّكَ الدَّجَّالُ الَّذِيْ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ حَدِيْثَهُ فَيَقُوْلُ الدَّجَّالُ : اَرَأَيْتُمْ اِنْ قَتَلْتُ هٰذَا ثُمَّ اَحْيَيْتُهُ هَلْ تَشُكُّوْنَ فِي الْاَمْرِ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: لَا، فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يُحْيِيْهِ فَيَقُوْلُ وَاللّٰهِ مَا كُنْتُ فِيْكَ اَشَدَّ بَصِيْرَةً مِنِّي الْيَوْمَ فَيُرِيْدُ الدَّجَّالُ اَنْ يَّقْتُلَهُ فَلَا يُسَلَّطُ عَلَيْهِ] [بخاری، کتاب الفتن باب لایدخل الدجال المدینة (۷۱۳۲) مسلم (۲۹۳۸)

(دجال به راشی او د هغه دپاره دا ممکن نهٔ ده چه د مدینے په کندونو راداخل شی نو هغه به مدینے ته نزدے کومه ښوره ناکه زمکه باندے پړاؤ واچوی۔ بیا به هغه ته په دغه ورځ یو مؤمن سړے راشی او هغه به د ټولو خلقو نه افضل ترین شخص وی او هغه ته به اُووائی : زه گواهی کوم چه ته هغه دجال ئے د کوم په باره کښې چه مونږ ته رسول الله ﷺ خبر راکړیدے۔ نو دجال به (خلقو ته) اُووائی : ستاسو څه خیال دے که زه دا (شخص) قتل کړم او بیا ئے راژوندے کړم نو آیا تاسو به زما په باره کښې (یعنی زما په

الـوهیـت او ربـوبیـت) کښې شلك بـاقـی پاتے شی ؟ نو خلق به ورتـه وائـی چه نهٔ، نو هغه به دغه شخص قتل کړی او بیا به ئے راژوندے کړی، نـو دغـه شخص به اُووائی چه قسم په الله نن زما ستا په باره کښې د مخکښې نه بصیرت زیات شو (چه ته واقعی دجال ئے) نو بیا به دجال اراده لری چه دا قتل کړی لیکن دے ځل به ئے نشی وژلے)۔

٤- دجال به یو باندچی ته اُووائی : که زه ستا پلار او مور تا دپاره دوبـاره راژونـدی کـړم نـو تـه به څه وائے ؟ آیا ته به دا ګواهی ورکړے چـه زه ستـا رب یـم نـو بـانـدچی به اُووائی : آؤ، نو دوه شیطانان به ددے بـانـدچی د مـور او پـلار په شکل د هغه مخے ته راشی او اُوبه وائـی : زمـونـږ څـویـه دده حـکـم اُومنه، دا ستا رب دے۔ (ابن ماجه کتاب الفتن ٤٠٧٧)

٥- پـه یـو روایـت کـښې دی چـه دجـال بـه مـرزادی ړوند او برګی مرض والا روغـوی، نـو چـا چه اُووئیل چه رب زما الله دے، نو هغه بـاندے به ددهٔ فتنه نهٔ راځی او چا چه ورته اُووئیل چه ته زما رَب ئے نو دا به په فتنه کښې اخته شی۔ دجال به څه موده چه الله غواړی په زمکه کښې اُوسیږی بیا به الله تعالیٰ عیسی ابن مریم (ؑ) راکوز کړی چه تصدیق کونکے به د محمد ﷺ وی، د هغه په دین باندے بـه وی، هـدایت یافته امام (مُقتدیٰ) به وی او عادل حکمران به وی نو دجال به قتل کړی)

(قصة المسیح الدجال للالبانی ص (٥٠)

٦- د مغیره بن شعبه ؓ نه روایت دے :

[مَا سَأَلَ اَحَدٌ النَّبِيَّ ﷺ عَنِ الدَّجَّالِ مَا سَأَلْتُهُ وَاِنَّهُ قَالَ لِيْ مَا يَضُرُّكَ مِنْهُ ؟ قُلْتُ: لِاَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ اِنَّ مَعَهُ جَبَلَ خُبْزٍ وَنَهْرَ مَاءٍ قَالَ : بَلْ هُوَ اَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ ذٰلِكَ] [بخاری کتاب الفتن (۷۱۲۲) ومسلم]

(د نبی ﷺ نه د دجال په باره کښې هیچا دومره تپوس نهٔ دے کړے څومره چه ما کړیدے، او نبی ﷺ ما ته اُوفرمایل : د دجال نه به تا ته څه نقصان رسیږی ؟ ما اُووئیل : خلق وائی چه د هغه سره به د ډوډئ غر وی او د اُوبو دریاب وی۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : بلکه هغه په الله تعالیٰ باندے ددے نه هم زیات آسان دے۔ یعنی د دجال حیثیت د الله په نیز ددے څیزونو نه هم کم دے کوم چه الله تعالیٰ د دجال په قدرت او طاقت کښې راوستی دی یعنی د ډوډئ غر او د اُوبو دریاب وغیره۔ او دا د الله تعالیٰ امتحان دے۔

**تبصره :** الله تعالیٰ همیشه دپاره په خپلو بندګانو باندے په مختلفو طریقو امتحان کوی، کله یوه فتنه راشی او کله بله، او د ټولو نه عظیمه فتنه د دجال فتنه ده، د دجال د راتلو په وخت کښې به هغه ته الله تعالیٰ داسے قدرتونه ورکړی وی چه د خلقو دپاره به لوئی امتحان وی، هغه به خپلو منونکو ته هر قسم سامانونه او د ډول ډال او خوراکونو څیزونه ورکوی، او نهٔ منونکی به په قحط او بد حالئ کښې اخته کوی، د هغوی په لاسونو کښې مالونه به کوټه کوی، د هغوی فصلونه به تباه کوی او پدے طریقه به هغوی ته خپل ربوبیت او الُوهیت ښائی او دا به د هغه د جادوګرئ یوه طریقه وی، د یو روایت نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ فرمائی :

دجال بـه اول ځـل دا وائـي چـه زه نبـي يـم او بيا به (روستو دا دعوه کـوی) وائـی بـه زه ستاسو رب یم ليکن (اے زما امته !) تاسو خپل رب تر هغه وخته پورے نشئ ليدلے ترڅو چه مره شوی نهٔ ئے)

(حاکم، قصة المسيح الدجال)۔

ددے مخکنو احاديثو نه د دجال قوتونه داسے معلوم شو :

(۱) د دجال قبـضه به په هغه وسائلو وی چه په هغے باندے د انسان ژوند بناء وی لکه مثلًا اُوبه، اُور او غذاء (خوراکونه) شو۔

(۲) د هغـه سره به بے دريغه دولت او د زمکے خزانے وی۔ زمکه به د هغه په حکم سره خزانے راوباسی۔

(۳) تـمـام قـدرتـی وسـائـل بـه د هغـه د لاس د لاندے وی مثلًا بارانونه، فصلونه، قحط او خشك سالی وغيره۔

(٤) هـغـه بـه پـه زمکـه داسے روان وی لـکـه هوا چـه وريځے الوځوی۔

(٥) هغه به يو نقلی جنت او جهنم د ځان سره راوړی۔

(٦) شيـطانان به د هغه مدد کوی، هغه به مړی د ژوندو په شکل کښ راښکاره کوی او خلقوسره به خبرے اترے کوی۔

(۷) دجال بـه پـه ژونـدی کولو او مړکولو باندے (په ظاهری طور بـانـدے) قـدرت لـری۔ او دا بـه امتـحان وی۔ دې دپاره چه ظاهريـن خلق گمراه کړی او خپل ربوبيت پرے اُومنی۔

(۸) پـه ژونـد او مرگ بـه د هغه اختيار محدود وی ځکه چه هغه به دغه مؤمن ځوان دوباره نشی وژلے۔

(۹) د دجال رعب داب بــه هر کلی تــه رسیږی سوئ د مکے او مدینے نه۔

ددے تطبیق د حاضرے زمانے سره :

## دولت او خزانے :

ډیر خلق پدے پو هیږی چه د دنیا معیشت دوه ادارے چلوی یو تــه (ورلډ بینك) او دویم تــه (آئی ایم ایف) یعنی انټر نیشنل مانیټری فنډ) وائی۔ یعنی بین الاقوامی مرکزی فنډ)۔ او دا خبره هم معلومه ده چه دے دوارو ته د عالمی معیشت نبض وئیلے شی او د دنیا د معیشت انحصار پدے دوه ادارو باندے منلے کیږی۔ دا ادارے په مقروض ملکونو باندے دباؤ اچوی او د هغے په ذریعه په وسائلو باندے تصرف او په مقاصدو باندے خپله اجاره داری قائموی...... لیکن ډیر کم خلق پدے پو هیږی چه ددے ادارے چلونکی څوك دی ؟ نو دا د انټر نیشنل بینکونو ډله ئے چلوی او دا ډله د فری میسنری (تنظیم) مشران ورونه چلوی کوم چه د دجال د عالمی اقتدار دپاره لاره هموارولو کښ د دنیا معیشت او اقتصاد په قابو کښ راوستلو دپاره لګیا دی کوشش کوی۔ او د دوی دا کوشش دے چه رفته رفته د خلقو لین دین د دوی د کرنسی مطابق شروع شی او د کرنسی په ځائے د دوی خاص کارډ استعمال شی دے دپاره چه په ټولو خزانو باندے د دوی تصرف راشی لکه اُوس هم د ټولے دنیا پیسے د دوی سره په یورپی ملکونو کښ جمع کیږی، خلقو تــه دا محفوظ ترین بینکونه ښکاری او ټوله سرمایه د دوی

سره جمع کوی دا ټول د دجال مشن روان دے۔

## اُوبه او خوراک:

نن صبا د قدرتی غذاګانو په ځائے د مصنوعی غذاګانو او خوراکونو ډیر جوش دے، بسکټ، چاکلیټ، آئس کریم، مکهن، اچار چټنی او مربے او قسماقسم مشروباتو داسے ترقی کړیده چه په کلو او اطرافو کښې هم خلق قدرتی خوراکونه پریدی او دا مصنوعی څیزونه استعمالوی، قدرتی پیئ په کلو کښې هم رفته رفته ختمیږی او مصنوعی حلیب او ملك پیك استعمالیږی او حال دا چه دا ټول مصنوعی خوراکونه او مشروبات د کیمیاوی مادو نه ډك دی۔ او ددے ټولے کمپنیائے او فیکټرانے او فارمولے د یهودیانو په لاس کښې دی، د هغوی په لاس تیاریږی او مسلمانان ئے په شوق سره استعمالوی۔ حیوانات په مصنوعی ذریعه سره پیدا کیږی، فصلونه په مصنوعی تخمونو رازرغون کیږی، کومه زمکه کښې چه امریکی تخم استعمال شی نو هلته بل تخم نهٔ کیږی۔ نو انسان چه کله یو ځل دغه تخم استعمال کړی بیا به مجبوراً همدغه استعمالوی ورنه زمکه به ئے بیکاره کیږی۔ اُوبو ته اُوګوره چه خلق غالباً قدرتی اُوبه نهٔ څکی، کافرانو ورته دا ښکاره کړیدی چه دے کښې جراثیمی اثرات وی ددے په ځائے فلټر شوے اُوبه څکل پکار دی کوم چه دوی تیارے کړے وی، او د خلقو دا فیشن ګرځیدلے دے چه په هر ځائے او هر هوټل کښې به د هغه په لاس کښې فلټر او دمنرل اُوبو بوتل وی۔ چه دا د دجالی قوتونو یوه

مظاهره ده۔ داسے وخت هم راتلونکے دے چه کافران به په قدرتی څیزونو پابندی اُولګوی او د مرئ نه خیتے ته تلونکے هر شے به مصنوعی شی او دا ټول به ددے کافرانو کمپنیو په لاس کښ وی او هغه به د دجال په لاس کښ راځی نو بیا که په دجال څوك ایمان نهٔ راوړی نو هغه به پرے یوه ټکره ډوډئ او یو ګوټ اُوبه هم حراموی، نو پدے طریقه به د دجال دا طاقت مضبوطیږی۔

اُوس پدے خبره کښ ته خپله سوچ اُوکړه۔

دجالی قوتونه همیشه دا اشتهارات ورکوی چه قدرتی اُوبه صحت ته ضرر ورکونکی دی او منرل اُوبه (یعنی د دوی تیار کړه اُوبه) د صحت دپاره مفیدے دی۔ او پدے طریقه دوی زمونږ د نسل نه د اربونو ډالر جمع کوی او د دوی د صحت خرابولو کوشش نه کوی۔

ابولبابه شاه منصور په خپل کتاب ((دجال کون کب)) کښ یوه واقعه لیکلے ده چه زمونږ یو ملګری د منرل اُوبو جوړولو یوه کمپنی جوړه کړه چه خلق پدے نوم غلط شے استعمالوی نو زه به په ښائسته انداز کښ د جراثیمو نه صفا اُوبه تیاروم، دنیاوی فائده به هم وی او مسلمانانو ته به هم فائده وی۔ نو د هغه اراده وه چه زه به معیاری کار کوم اګرکه فائده کمه ملاویږی۔ کله چه هغه پلانټ اُولګولو او د ټولو تجرباتو مکمل کولو نه پس حکومتی نماینده د هغه د منظورئ دپاره راغلل نو هغوی ترے تپوس اُوکړو چه آیا ته پدے کښ هغه قطرے یو ځائے کوے او که نهٔ؟ نو هغه ته

تعجب اُوشو چه کومے قطرے په اُوبو کښې ملاوولے شي ؟ نو قصه دا ده چه د انسان په تولیدی مادو کښې دوه قسمه جراثیم وی یوه د ایکس (x) په شکل ده او دویمه د وائی ( y ) په شکل ده که اوله زیات شي نو د الله په حکم سره مذکر او که دویم زیات شي نو مؤنث بچے پیدا کیږی۔ نو د دویم قسم قطرو ملاوولو نه بغیر د اُوبو خرخولو لائسنس نهٔ ورکړے کیږی۔ دغه شان نور واقعات هم راپیښیږی۔ قرآن گواهی کوی چه یهود او نصاریٰ او ټول کفار د مسلمانانو په باره کښې د فساد په خورولو کښې هیڅ کوتاهی نهٔ کوی۔ (آل عمران)

## قدرتی وسائل :

یعنی بارانونه، فصلونه او موسم او د هغے اثرات قحط، او خشك كالي وغیره۔ تا ته به معلومه وی چه په مخ د زمکه کښې د موسم ښکاره تبدیلیانے راروانے دی او موسم د سختے تباهئ مخامخ کیدونکے دے۔ امریکی سائنسدانانو یوه اداره قائم کړیده چه هغه د موسمونو د بدلولو سره براهِ راست تعلق لری۔ دا اداره صرف د موسمو د تغیر ذمه داره نهٔ بلکه په کرهٔ ارض کښې د زلزلو او طوفانونو د اضافے هم ذمه داره ده۔

دا اداره د (۱۹۶۰ء) د عشرے نه دا تجربات کوی چه د راکټونو او مصنوعی سیارو په ذریعه په وریځو باندے کیمیائی مادے (بیریم پاؤډر وغیره) توئی کوی چه په هغے سره مصنوعی باران کیږی۔ دا ټول کوششونه په قدرتی وسائلو باندے د قبضے کولو دپاره

کیږی دے دپاره چه دجال په چا اُوغواړی باران اُوکړی او ځوك په قحط سالئ کښ اخته کړی او چا نه چه دجال خوشحاله وی نو هغه له تازګی او شینکی ورکړی او چا نه چه خفه وی نو هغه له خاورے ورکړی۔ لهذا مسلمانانو له پکار دی چه قدرتی غذاګانے او خوراکونه استعمال کړی او دے له ترقی ورکړی، دا زمونږ د ټولو دپاره د بیدارئ وخت دے چه مونږ قدرتی خوراك (مسنون او فطری خوراك) استعمال کړو او د مصنوعی څیزونو نه ځان اُوساتو کوم چه روستو زمانه کښ دجالی غذاګانے جوړیږی۔

**دوائی او علاج :**

په دوائی باندے مکمل طور سره د نیشنل کمپنیانو قبضه ده، دوی په مختلف ممالکو کښ داسے قوانین منظور کړیدی چه اصلی طریقه دعلاج اګرکه آسانه او ارزان ده لیکن دوی هغه ممنوع ګرځولے ده، د عالمی کمپنیانو کارکنانو د مقامی طریقهٔ علاج او مقامی دوائی سازونکو کمپنیانو په خلاف داسے پروپیګنډه کوی چه په آرام آرام سره دنیا د دوی نه متنفره شی او د دوی د کمپنیانو په لاس کښ راشی۔ په قدرتی جړو او بوټو مشتمل علاج باندے په آرام آرام سره مکمله پابندی لګیږی او دنیا به مکمل طور سره د یهودی ملټی نیشنل کمپنیانو په قبضه کښ راځی۔ د دوی په ګمان کله چه دوی غواړی نو د یو ملك مریضان د خپلے دوائی نه محرومه کړی او د هغوی د مرګ تماشا اُوکړی نو کولے به ئے شی۔

ددے وجه نه دوی په ډاکټرانو، او د محکمهٔ صحت په کارکنانو دا پابندی لګولے ده چه ترڅو مونږ ته مصنوعی ادویات پیش نکړے شی او زمونږ اجازت او رجسټری ورنکړے شی نو د هغے خرڅول او جوړول به جرم شمارلے شی۔

د دوی دا کوشش دے چه انسانی صحت په منفی انداز کښې تبدیل کړی، مختلف قسم دوائیانے، قطرے، ویکسین وغیره په جبری طریقے سره د پولیس په ذریعه سره عام کوی او که څوك دا قطرے نهٔ اچوی نو باقاعده د هغوی په نوم رپورټ درج کیږی او د عام ډاکټرانو په ذهن کښې ددے قطرو او ویکسینو عظمت او هیبت پیدا کوی او ددے دپاره کله د مولیانو نه کار اخلی او کله د کلی مشران او سپین ږیره خلق۔

(دجال کون کب؟ص (۱۶۲) بتغیر)

## د شیطانانو مدد :

زمونږ د نبی محمد رسول الله ﷺ دپاره الله تعالیٰ ټول کمالات د انسانانو راجمع کړی وو، ددے وجه نه الله تعالیٰ هغه د ټول انسانیت نه افضل کړے وو نو د هغه په خلاف باندے ټولے بدیانے په دجال کښې راجمع کړیدی او هغه د هغه د مخ نه ښکاره کیږی د هغه د تندی په مینځ کښې به کافر لیکلے شوے وی، د هغه یوه سترګه د هغه د ناقص شخصیت علامه ده۔ لکه څنګه چه ملائکو د رسول الله ﷺ مدد کړے وو نو ددے په خلاف به شیطانان د دجال مدد کوی او دا به د مسلمانانو دپاره لوئی امتحان

وی چه آیا دوی په دجال باندے ایمان راوړی او که په الله باندے په ایمان راوړو کښې استقامت کوی۔

## په انسانی آبادی باندے اختیار :

د دنیا کافران دا نعرے لګوی چه نسل کمول پکار دی ځکه چه د معیشت اسباب دنیا کښې کم دی، کله وائی اُوبه کمے پیدا کیږی، کله وائی د زمکے پیدا وار کم دے، کله وائی چه زیات نسل سبب د سردردئ او پریشانئ دے ځکه چه دوی له رزق پیدا کول هم لویه مسئله ده۔ نو ددے دپاره ئے د منصوبه بندئ په شکل کلینکونه او ادارے قائمے کړیدی، دے دپاره چه د مسلمانانو نسل کم او د یهودو نسل زیات شی او دوی ته دا خطره ده چه که مسلمانان زیات شی نو زمونږ دپاره پریشانی جوړیږی، لهذا دوی د فحاشئ او زناکارئ او د جنسی آزادئ دپاره لاره هموارو ی۔ مسلمانانو ته داسے قسم ادویات ورکولے شی چه د هغے په ذریعه سره دوی کښې د زیاتو بچو راوړلو قابلیت ختم شی۔ او ددے دپاره هر قسم حربے استعمالوی۔ لیکن ددے په خلاف رسول الله ﷺ مونږ ته دا ترغیب راکړیدے چه تاسو داسے ښځے سره نکاح کوئ چه هغه مینے محبت او زیات بچو راوړونکی وی ځکه چه ددے په ذریعه به زه په نورو باندے په ډیر والی سره فخر کوم۔ لهذا مسلمانانو له بیداری پکار ده او د کافرانو د چَالونو او حیلونه ځان خبرول پکار دی۔ او دا آیت د سورة آلعمران یاد ساتل پکار دی : (چه دا کافران ستاسو په فساد کښې

هیڅ قسمه کوتاهی نهٔ کوی) (آلعمران) الله تعالیٰ دِې مونږ او ټولو مسلمانانو ته د دین بصیرت او پوهه رانصیب کړی او د دجالی قوتونو د فتنو او دسیسونه دِې په خپل فضل او رحمت سره محفوظ اُوساتی آمین۔

## آیا دجال په دنیا کی موجود دے ؟

### د تمیم داری د دجال سره ملاقات۔

فاطمه بنت قیس رضی الله عنها فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ دیو آواز کونکی نه واوریدل چه اے خلقو مانځه دپاره راجمع شئ۔ زه هم مسجد طرف ته راووتلم، او ما د رسول الله ﷺ سره مونځ اداکړو۔ زه د خلقو سره په هغه صف کښې وم په کوم کښې چه زنانه وے۔ کله چه رسول الله ﷺ مونځ اُوکړو نو منبر باندے کیناستو، نو خندل ئے، وے فرمایل : هر سړے دِې په خپل خپل ځائے کینی، بیائے اُوفرمایل : آیا تاسو پوهیږئ چه تاسو ما ولے راجمع کړئ؟ صحابه کرامو اُووئیل : الله او د هغه رسول ښه پوهیږی، رسول الله ﷺ اُوفرمایل : قسم په الله ما تاسو ته د رغبت درکولو او د یرولو دپاره نهٔ ئے راجمع کړی بلکه ددے دپاره مے راجمع کړئ چه د تمیم داری په باره کښې خبر درکړم، دا مخکښې نصرانی وو، دا راغلو او بیعت ئے اُوکړو او مسلمان شو او ما تهٔ ئے یو حدیث بیان کړو چه د هغه حدیث موافق وو کوم چه ما تاسو ته د دجال په باره کښې بیان کړے وو۔ هغه اُووئیل چه زه د لخم او جذام قبیلے د

دیرش سړو سره په یوه کشتۍ کښې سور شوم چه یوه میاشت د دریاب چپو په هغه کشتۍ باندې لوبې کولې تردې چه د هغوی کشتۍ مغرب طرف ته یوې جزیرې سره پیوسته شوه، بیا هغوی په وړه کشتۍ کښې سواره شو او جزیرې ته داخل شو نو دوی سره د ګڼړو ویښتو والا یو داسې حیوان ملاؤ شو چه د ډیرو ویښتو په وجه د هغه مخ او شا نۀ معلومیده۔

(بل روایت کښې دی چه یوې ښځې سره ملاؤ شو چه ویښته ئې ځان پسې راښکل) نو دوی د هغه نه تپوس اُوکړو: ته څوک ئې ؟ نو حیوان اُووئیل : زه جاسوس یم، نو هغوی اُووئیل : کوم جاسوس ؟، هغه اُووئیل : هغه شخص خوا ته ورشئ کوم چه په دَیر (وران کور) کښې دې هغه ستاسو د خبر شوق لرونکې دې۔ تمیم اُووئیل : کله چه هغه د یو سړی نوم واخستو نو مونږ د هغه نه اُویریدو چه دا چرته شیطانه نۀ وی، بیا مونږ په جلتۍ سره لاړو تردې چه دَیر ته داخل شو نو ناڅاپه مونږ هغې کښې یو غټ بدن والا انسان اُولیدو چه مونږ کله هم دغه شان غټ قد والا انسان نۀ وو لیدلې، نو هغه تړلې شوې وو، د هغه دواړه لاسونه د څټ پورې او زنګنونه نه تر ګیټو پورې په مضبوطه اُوسپنه سره تړلې شوې وو، مونږ اُووئیل : کمبخته ته څوک ئې ؟ هغه اُووئیل : زما خبر به تاسو حاصل کړئ خو تاسو اُووایئ چه تاسو څوک یئ ؟ نو دوی اُووئیل چه مونږ د عربو خه کسان یو، مونږ په یوه بحری کشتۍ کښې کیناستو نو د دریاب (چپو) په مونږ باندې یوه میاشت پورې لوبې اُوکړې نو

مونږ دے جزیرے ته راداخل شو نو مونږ سره یوه ډیرو ویښتو والا حیوان (ښځه) ملاؤ شو، هغے اُووئیل چه زه جاسوسه یم، تاسو دے دَیُر کښې موجود سړی ته ورشئ نو مونږ تا ته په جلتئ سره راغلو او مونږ د هغے نه اُویریدو او مونږ د هغے د شیطان کیدو نه په امن کښې نهٔ یو۔ (یعنی هغے باندے مونږ د شیطان گمان اُوکړو)۔ نو دجال اُووئیل : ما ته د بَیْسَان (شام) د کجورو په باره کښې خبر راکړئ ؟ مونږ اُووئیل : ته د هغے کوم خبر غواړے ؟ هغه اُووئیل : آیا هغه میوے ورکوی ؟ مونږ اُووئیل : آؤ، هغه اُووئیل : نزدے ده چه هغه به میوے نهٔ ورکوی۔ هغه اُووئیل : ما ته د بحیره طبریه خبر راکړئ ؟ مونږ اُووئیل: د هغے د څه په باره کښې خبر غواړے؟ هغه اُووئیل: آیا په هغے کښې اُوبه شته ؟ مونږ اُووئیل : هغه ډیرے اُوبو والا ده۔ هغه اُووئیل: خبردار! نزدے ده چه ددے اُوبه به اُوچے شی۔ هغه اُووئیل : ما ته د زغر (شام) د چینے په باره کښې خبر راکړئ ...... آیا په هغه چینه کښې اُوبه شته او آیا خلق د هغے نه فصلونه اُوبه کوی؟ مونږ اُووئیل : آؤ، په هغے کښې ډیرے اُوبه دی او خلق د هغے د اُوبو نه فصلونه خړوبه کوی۔

هغه اُووئیل : ما ته د عربو د نبی خبر راکړئ چه هغه څه اُوکړل ؟ مونږ اُووئیل : هغه د مکے نه هجرت کړیدے او مدینے ته راغلے دے۔ هغه اُووئیل: آیا عربو ورسره قتال کړیدے ؟ مونږ اُووئیل : آؤ، هغه اُووئیل : هغوی سره ئے څنګه کار کړیدے (نتیجه ئے څنګه ده؟) نو مونږ هغه ته خبر ورکړو چه هغه په نزدے عربو

باندے غالبه شویدے او هغوی ئے تابعداری شروع کړیده۔ هغه دوی ته اُووئیل چه آیا واقعی داسے شویدی ؟ مونږ اُووئیل : آؤ، هغه اُووئیل : خلقو دپاره د هغه تابعداری بهتره ده۔ او زه به تاسو ته د خپل طرف نه خبر درکړم چه زه مسیح دجال یم، نزدے ده چه ما ته به د راوتلو اجازت راکړے شی نو زه به راوځم او په زمکه کښې به ګرځم، هیڅ کلے به نهٔ پریدم مګر هغے ته به په څلویښت ورځو کښې ورځم سویٰ د مکے او مدینے نه دا دواړه په ما باندے حرام دی۔ هرکله چه زه اراده اُوکړم چه داخل شم یو ددے دواړو ته نو ما ته به یو ملائك توره په لاس مخے له راځی چه هغه به ئے راویستلی وی ما به د هغے نه منع کوی او د هغے په هره یوه لاره باندے ملائك دی چه د هغے څوکیداری کوی۔

نو نبی ﷺ خپله امسا په منبر باندے درے کرته اُووهله او وے فرمایل :

[اَلَا هَلْ كُنْتُ حَدَّثْتُكُمْ ذٰلِكَ ؟ فَقَالَ النَّاسُ: نَعَمْ فَاِنَّهٗ اَعْجَبَنِیْ حَدِیْثُ تَمِیْمٍ اِنَّهٗ وَافَقَ الَّذِیْ كُنْتُ اُحَدِّثُكُمْ عَنْهُ وَعَنِ الْمَدِیْنَةِ وَمَكَّةَ اَلَا اِنَّهٗ فِیْ بَحْرِ الشَّامِ اَوْ بَحْرِ الْیَمَنِ لَا بَلْ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ، مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ، مَا هُوَ، مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ مَا هُوَ، وَاَوْمَاَ بِیَدِهٖ اِلَى الْمَشْرِقِ]

[مسلم كتاب الفتن، باب قصة الجساسة (۲۹٤۲) مسند احمد (٤١٩/٦)]

(آیا ما تاسو ته ددے (دجال) په باره کښې بیان نهٔ وو کړے؟ خلقو اُووئیل : ولے نهٔ !، بیا نبی ﷺ اُوفرمایل : ما ته د تمیم (داری) دا خبره پدے وجه ښه ښکاره شوه چه دا زما د هغه خبرے مشابه ده کومه چه ما تاسو ته د دجال او د مکے او د مدینے په باره کښې بیان

کړے وه۔ خبردار ! دجال د شام په درياب کښې دے يا د يمن په درياب کښې دے، نهٔ بلکه هغه مشرق طرف ته دے، هغه مشرق طرف ته دے، هغه مشرق طرف ته دے، نبی ﷺ مشرق طرف ته خپل لاس سره اشاره هم اُوکړه)۔

**تبصره** : ددے حديث نه دا معلومه شوه چه دجال په کومه سياره کښې نهٔ دے، نهٔ د زمکے نه علاوه په بل مکان کښې دے، او نهٔ هغه په هواء کښې دے بلکه پدے زمکه کښې په کومه جزيره کښې تړلے شويدے۔ ددے حديث مختصره تشريح د عنواناتو په شکل داسے زده کړه :

## د دجال درے سوالات :

(۱) بَيْسَان کښې واقع کجورو باغ ميوے ورکوی او که نهٔ ؟۔

(۲) د طبريه په درياب کښې اُوبه شته او که نهٔ ؟۔

(۳) د زُغر چينے نه خلق خپل پټی او فصلونه اُوبه کوی او که نهٔ ؟۔

ددے درے واړو خبرو پيژندل ضروری دی دے دپاره چه د دجال د راوتلو حقيقت معلوم شی۔ ځکه چه د دجال ددے درے واړو سره ژور تعلق دے۔ اول :

### (۱) د بيسان باغ :

بيسان په فلسطين کښې د يو ځائے نوم دے۔ چه دا د امير المؤمنين عمر بن الخطاب ﷺ په دورِ خلافت کښې مشهور کمانډر صحابی شرحبيل بن حسنه ﷺ فتح کړے وو۔ په سنه (۱۹۲٤ء)

کښې د خلافتِ عثمانیه د سقوط نه بعد چه کله د جزیرة العرب حصې تقسیم شوې نو دا د اُردن حصه جوړه شوه۔ د (۱۹٤۸ء) پورې دا د اسلامی ملك اُردن حصه وه۔ په مئ (۱۹٤۸ء) کښې اسرائیلو په بیسان او ورسره په خواؤ شا علاقو باندې قبضه اُوکړه او ترنن تاریخ پورې دا د اسرائیلو په قبضه کښې دې کوم چه دجالی ریاست دې۔ دا علاقه په پخوانئ زمانه کښې د کجورو د باغاتو دپاره مشهوره وه چه د هغې تصدیق د رسول الله ﷺ دې صحابی کړیدې۔ لیکن اُوس دلته میوه نهٔ پیدا کیږی۔

مشهور مؤرخ او سیاح علامه یاقوت حمویؒ په خپل مشهور کتاب (معجم البلدان) کښې فرمائی چه زه ډیر کرته بیسان ته تلې یم لیکن ما هلته صرف دوه پخوانی د کجورو باغونه لیدلی دی۔ ددې نه معلومه شوه چه دلته به باغونو مخکښې میوې ورکولې تر (٦٢٦ هـ) پورې چه دا د حموی د وفات تاریخ دې۔ نو دغه ونو میوه ورکول بند کړی وو۔ الله اکبر! دا د دجال ددې خبرې تصدیق دې چه ((نزدې ده چه دا باغ به میوې ورنکړی)) ۔ گویا کښې د دجال د راوتلو د درې علامو نه یوه علامه پوره شویده۔

## (۲) د طبریه دریاب اُوبه :

د دجال دویم سوال دا وو چه د طبریه دریاب اُوبه اُوچې شویدی او که نهٔ ؟ گویا کښې ددې اُوبو د اُوچیدلو د دجال د راوتلو سره ضرور څه تعلق شته۔ د طبریه دریاب د اسرائیلو په شمال مشرق کښې د اُردن سرحد ته نزدې واقع دې۔ چه د هغې اُوگدوالې (۲۳) کلو میټر

دے او زیات نـه زیات پلنوالے ئے (۱۳) کلو میتر دے۔ او د هغه ژور والے (۱۵۷) فټ دے۔ د هغـه ټوله رقبه (۱٦٦) مربع کلو میتر ده۔ پدے باندے پدے وخت کښ د اسرائیلو قبضه ده او عجیبه خبره لا دا ده چـه ددے اُوبـه وخـت پـه وخـت بغیر د څـه ظاهری سبب نـه اُوچیږی۔

اسـرائیـلـی حـکـومت د خلیج عقبه نه د اُوبو د پائپونو د لائنو په ذریعـه دلتـه اُوبـه رارسوی لیـکـن د طبـریه دریاب اُوبه خوږے او د سمندر اُوبه ترخے دی۔ پدے وجه د هغے د خوږولو دپاره لوئی لوئی پلانټونـه نـصـب کـولے شـی چـه پـه هـغـے بـاندے په لویه پیمانه اخـراجـات راځـی۔ نـو ددے طبـریـه دریـاب اُوچیدل د دجال د راوتلو دویمه علامه هم پوره شویده۔

(۳) د زُغر چینهٔ :

د دجال دریـم سوال ...... د زُغر چینے په باره کښ وو۔ زغر په اصل کښ د لوط علیہ السلام د لـور نوم دے، د هغه دوه لونړه وے، (ربه) او (زُغر) مشـره لـورئے د وفات نه بعد چه کوم ځائے دفن شویده هلته نزدے یـوه چیـنـه وه چه د هغے نوم (عین ربه) شو، په عربئ کښ چینے ته عیـن وائـی۔ او کشـره لـورئے چه کله وفات شوه نو هغه هم د یوے چینے په خوا کښ دفن شوه نو د هغے نوم (عینِ زغر) (یعنی د زغر چینه) شوه۔

دا ځـائے هم د اسرائیلو په مشرق په بحر مردار کښ دے۔ د دجال د تـفـتیـش مـطـابق دا دریم ځائے هم په اسرائیلو کښ واقع دے او ددے

اُوبـو پـوره طـریـقـے سـره اُوچیـدو سـره بـه هغـه تـه د راوتلو اجازت ملاویږی۔

## د دجال جاسوس :

پـه حـدیـث شـریف کښې د دجال ددے درے تپوسونو نه علاوه یوه خبـره دا ذکـر شوه چه صحابی (تمیم داری) فرمائی : په جزیره کښې مونږ یو عـجیبه مخلوق اُولیدو چه د هغه په بدن باندے ډیر ویښته وو، چـه د ویښتـو د ډیر والی په وجه د هغې مخ او شا نهٔ معلومیده مـونـږ د هغـه نـه تپـوس اُوکـړو چـه تـه څوک ئې هغې اُووئیـل : زه جاسوسه یم۔

(جَسَّاسَه) جاسوسی کونکی (جاسوس یا جاسوسه) ته وائی۔ ددے نـه مـعـلـومه شوه چه د دجال نه مخکښې به د هغه دپاره جاسوسی کـونـکی خلق پیدا کیږی او د جاسوسی او د اطلاعاتو حاصلول به د دجال اهم ترینه حربه وی۔

دجال به په ټوله دنیا کښې د خپل کُلی اقتدار او استحکام دپاره د خـفـیـه نـګـرانـیٔ جال خوروی او ټول خلق به د خپلې یوے سترګے د دائـرے نـه نـهٔ بهـر کوی پدے وجه اُوس نه په دنیا کښې داسے څیزونه شروع شـویـدی چـه هـغـه ټـول د دجال او د هغه د مشریٔ دپاره کار کـوی او د ټـولـے دنـیـا انسـانـانـو د مـعـلـومات جمع کولو دپاره لاره هموا روی۔ د مثال په طور :

۱- ډیټـا انـفـارمیشـن : پـه دنیـا کښې د څه زمانے نه د هر انسان د کـوائف جـمـع کـولـو یـو نـظام متعارف شویدے چه هغه وخت په

وخت خپله دائره غټوی، د هغې عنوان په ظاهر کښې خو ډیر مؤثر دے چه (د ملکی سلامتی دپاره د وطن اصلی اوسیدونکو کوائف جمع کول) لیکن دا په اصل کښې د ټولے دنیا معلومات خپل ځان سره جمع کول وی، پدے کښې د هر انسان نوم، پته، تصویرونه، د ګوتو نشاناتو په ذریعه سره معلومات جمع کیږی، نادرا ادارے ددے دپاره په وجود کښې راغلی دی، دے دپاره چه څو کاله روستو هیڅ یو فرد هم د خفیه نګرانانو نه پټ پاتے نهٔ شی۔

کله چه یو انسان غټو سټورونو ته د شاپنګ دپاره ځی نو هغه ته لائیلټی کارډ پیش کیږی چه په هغې کښې د خریدار په باره کښې معلومات درج کیږی مثلاً د هغه پته، فون نمبر، هغه خریداری چه دهٔ کومه کړی وی، اوکوم شے چه دهٔ ته خوښ وی وغیره وغیره۔ په استهور کښې نصب کیمرے د خریدار هر حرکت محفوظ کوی، ددے کیمرو په ذریعه د خریدار د نقل وحرکت او دلچسپی معلومات هم کیږی، چه کوم مصنوعات دهٔ فوراً راپورته کړیدی او د کوم مصنوعاتو په باره کښې دا متذبذب دے؟ بیا دغه معلومات لوئی کمپیوټر ته لیږلے شی او په هغې کښې محفوظ کیږی۔

۲- نګران کیمرے:

په ټوله دنیا کښې د نګرانی فریضے پوره کولو دپاره ځائے په ځائے کیمرے نصب شویدی او په تیزئ سره هر ځائے کښې خوریږی۔ په کراچئ کښې د غټو لارو نه علاوه په حبیب چورنګی په شان ځائے

کښې هم د کیمرونه ډك يو اُوچت ټاور (بلډنګ) نصب دے چه د هغې په ليدلو سره انسان حیرانیږي چه ملك څومره ترقي کړيده۔

ددے کیمرو دپاره خلق وجه دا بیانوي چه پدے سره د جرائمو نه تحفظ، د خلقو د جان او مال حفاظت او په لارو باندے د تيز رفتار ډرائيونګ بندولو دپاره مدد ملاويږي ليکن اصل مقصد نګراني ده او ددے مقصد دپاره په ټوله دنیا کښې ګير چاپيره سيټلائټ (مصنوعي سيارے) وضع کړے شويدي۔

په دکانونو، بسونو، ريل ګاړو کښې نصب شوے کيمرو په ذريعه ستا نقل او حرکت باندے نظر ساتلے شي، او د ټرانسپورټ کيمرے خو نهايت حساس او د بټن په شکل وي۔

۳- چينل او کمپيوټر:

کله چه ته کورته راشے نو د سيټلائټ چينل په ذريعه هغوي ته معلوميږي چه ته کوم چينل سره مينه لرے؟، ستا د ټيلي فون د ريکارډ په ذريعه هغوي ستا د خاندان او دوستانو په باره کښې هم معلومات لري چه ته د چا سره خبرے کوے دا ټول هغوي سره جمع کيږي، هغوي ته دا پته لګيږي چه ته د کمپيوټر په ذريعه کوم ويب سائټ استعمالوے، کوم اي ميل تاته راځي، که ته نيټ ته د چا نوم ورکړے مثلًا اسامه بن لادن نو خود بخود به خصوصي نګراني تا په خپل فوکس کښې اخلي، که ته په فون باندے ئے، يا اي ميل کوے يا کوم ويب سائټ استعمالوے نو ستا جاسوسي به شروع کيږي دا هغه د دجال جساسه ده۔

٤- دغـه شـان کله چه ته سفری ټکټ جوړوے نو په هغے کښ به ستا نوم، فون نمبر لیکلے کیږی، په اندرون ملك کښ د جهاز په ذریعه سفر کولو دپاره هم شناختی کارډ جوړول لازمی وی او بهر ملك دپاره خو بیا ټیکټ او ویزا وغیره کښ ستا پوره معلومات او ځائے په ځائے کیمرے ستا جاسوسی کوی۔ پدے شکل سره هغوی د ټولے دنیا خلق په خپله نگرانئ کښ رابندوی۔

٥- د پیسو نقل کول:

کله چه ته د یوے علاقے نه یا د یو ملك نه د بینك په ذریعه پیسے بلے علاقے یا ملك ته رالیږے نو دا تر هغه وخت پورے نشی کیدے ترڅو چه د نیویارك نه د هغے صفائی نهٔ وی شوی ددے وجه نه پدے کښ ډیر مشکلات پیدا کیږی، د هغے په باره کښ دومره سوالات مخے ته راځی چه انسان تنگ شی، پدے سره د عوامو زندگی هم تنگیږی او خپله د دجال د جاسوسانو زندگی هم۔

## د دجال سورلی:

د دجال د سورلئ په باره کښ یو څو حدیثونه راغلی دی:

(۱) حدیث د نواس بن سمعان رضی الله عنه دے چه مسلم کښ راغلے دے چه نبی صلی الله علیه وسلم د دجال د سورلئ رفتار بیان کړیدے، نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل: [كَالْغَيْثِ اسْتَدْبَرَتْهُ الرِّيحُ] لکه تیزه هوا چه باران اَلوزوی) د غیث معنیٰ د باران ده، لیکن علماؤ د غیث ترجمه په (غیم) یعنی وریځے سره کړیده۔ مطلب دا دے چه د هغه وریځے په شان چه تیزه هوائے اَلوزوی۔ لیکن که ددے حقیقی معنیٰ (باران) هم واخلے نو بیا هم

صحیح ده ځکه چه کله تیزه هوا د باران پسے شی نو باران ډیر لرے غورزوی فتدبر۔

(۲) حدیث په مستدرك د حاکم کښې راغلے دے چه ذهبی ورته صحیح وئیلے دے، د حذیفه ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((هغه (دجال) دپاره به زمکه داسے راتاویږی لکه څنګه چه د ګډ پوستکے راتاوولے شی))۔

ددے نه معلومه شوه چه دجال به په ټوله دنیا باندے ډیر زر زر ګرځی او په لږ وخت کښې چه څلویښت ورځے دی په ټوله دنیا کښې چکرے وهی او د خپل الوهیت دعوے به کوی۔

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی: [اِنَّ اُذُنَ حِمَارِ الدَّجَّالِ لَتُظِلُّ سَبْعِيْنَ اَلْفًا] (ابن ابی شیبة ۳۸٦۹۰) والفتن لنعیم بن حماد ۱٥٤۱) والفتن للمروزی ۱٥٤۰)

د دجال د خر د غوږ په سوری کښې به اوویا زره کسان راځی)

## د دجال د سورلی په باره کی ضعیف روایات:

د دجال د سورلۍ په باره کښې د نورو احادیثو په کتابونو کښې ډیر روایات راغلی دی لیکن هغه ضعیف دی، د تنبیه دپاره ذکر کولے شی:

۱- عبد الله بن مسعود ﷺ د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی چه هغه اُوفرمایل: د دجال د خر د دواړو غوږونو ترمینځ به څلویښت ګزه فاصله وی (دا حصه په صحیح احادیثو کښې هم راغلے ده) او د

هغه د خر یو قدم به د درے ورځو د مسافت برابر وی، او هغه به په خپل خر باندے سور وی او په سمندر کښې به داخلیږی لکه څنګه چه تاسو په خپل اس باندے سوریدو سره په وړوکے والّه باندے ورداخلیږئ۔ (الفتن د نعیم بن حماد)

(۲) د دجال آواز به په مشرق او مغرب کښې آوریدلے شی)
(کنز العمال)

(۳) د هغه رفتار به دومره تیز وی چه د نمر نه مخکښې به د هغه د پریوتو ځائے ته رسیږی۔ (ابن ابی شیبه)

(٤) د الوتلو سره سره په دریاب کښې داخلیدل او په دریاب باندے پورے وتلو صلاحیت به هم د هغه په سورلئ کښې موجود وی۔ په فضاء کښې به معلق (زوړند) وی۔

(٥) د هغه سورلئ به لکئ پریکړے شوے خر وی۔

(٦) تَحْتَهٗ حِمَارٌ اَقْمَرُ: (دجال به په یو چمکدار (روښانه) خر باندے سور وی۔ د هغه د سورلئ د غوږونو په سوری کښې به آویا زره کسان راځی)۔ (الفتن نعیم بن حماد، ابوعمرو الدانی، کنز العمال)
(برمودا تکون لعاصم عمر ص ۱۳٦)

**تبصره** : د دجال متعلق په احادیثو کښې دا خبره راغلے ده چه په یوه سورلئ به سور وی او هغه سورلئ به ډیره تیز رفتاره وی۔ بعض علماؤ ددے د جدید آلاتو سره تطبیق کړیدے چه هغه به په هوائی جهاز باندے سور وی لکه اُوس انګریزانو یو جهاز جوړ کړیدے چه د هغه نرئ نرئ پرے (وزرے) دی او ډیر اُوږد دے او هغے

دپاره ئے د خر په شان غورونه هم جوړ کړیدی او دا ئے وئیلی دی چه ددے رفتار دا دے چه په پنځه ځلویښت منټه کښ د ټولے دنیا نه چکر لګوی او د هغه د دواړو وزرو تر مینځ ځلویښت ګزه فاصله ده۔ نو کیدے شی چه دا د دجال د سورلئ ممکنه شکلونه وی۔

او دا دلیل دے چه د دجال د راښکاره کیدو وخت بالکل لرے نهٔ دے۔ اګرکه پدے باندے یقین نشی کیدے چه ضرور به دجال په جهاز سور وی بلکه کومه خبره چه په احادیثو کښ ثابته ده بس په هغے کښ خیر دے او داسے قسم تطبیق کول لږ مشکل دی، هرڅنګه چه وی خو دجال به ضرور راځی او رفتار به ئے تیز وی برابره ده که هوائی جهاز وی او که خر وی او که په بل شکل وی۔ او ددے متعین کول څه ضروری هم نهٔ دی او نهٔ د عقیدے سره تړلے خبره ده۔

## دجالی مذهب :

دجال به د یو نوی مذهب دعوت ورکوی، داسے نوے او دروغجن مذهب به وی چه اول به هغه د نبوت دعوی کوی او بیا به اُلوهیت۔ ددهٔ غټه فتنه به دا وی چه الله تعالیٰ هغه ته کوم قدرتونه ورکړیدی نو د هغے نه به د خیر کار اخستو په ځائے د شر کار اخلی۔ ددے مذهب دپاره اُوس یو تنظیم جوړ شویدے چه هغے ته (فری میسن) وائی۔

ددے تنظیم مقاصد دا دی : ۱ – مغربی جمهوریت په ټوله دنیا باندے لاهو کول چه دا د دوی د دجال بر سر اقتدار راوستلو دپاره

بهترینه ذریعه ده۔

۲- دارنګه مغربي نظام د معیشت راوستل چه هغه په سود، جواري، دوهوکو او ضرر او بې حسابه منافع خوري باندې مشتمل دې۔ ۳- د ټیکس نظام په کُلي طور باندې رائج کول او د زکوٰة او صدقاتو نظام ختمول یعنی هغه نظام چه په هغې کښې حکومتونه د ورکولو په ځائې د اخستو مزاج جوړوي او خپل عوام لوټ کوي۔

٤- مغربي تهذیب کوم چه په اباحیت او عقل پرستۍ باندې مشتمل دې یعنی د وحي په رهنمائي کښې د جائز او ناجائز د تعیین په ځائې د عقل او شهوت په بنیاد باندې د صحیح او غیر صحیح تعیین ..........وغیره وغیره۔ دا د دوی مقاصد دي۔

دا هغه یواځې خفیه تنظیم دې چه د مذهب د نوم اخستو نه بغیر خپل نظریات، رسومات او اصطلاحاتو کښې دیو مکمل مذهب شکل لري، فري میسن چه کوم د نوي نظام نقیب او مشري کوي نو دا په حقیقت کښې یو عالمي مذهب دې او افسوس دې چه دا روحاني نهٔ بلکه شیطاني مذهب دې، چه د تحریف شوي یهودیت او د نفس او شیطان پرستۍ نه جوړ شویدې۔

لاندې یو اقتباس اُوګورئ چه هغه د فري میسنري د اصلي هدف (عالمي حکومت) د قیام د خاکې نه اخستې شویدې :

((صرف د یو مذهب اجازت به ورکولې شي او هغه به د یو عالمي سرکاري کلیسا په شکل وي کوم چه په (۱۹۲۰ء) نه په

وجود کښې راغلي دي۔ شيطانيت، ابليسيت او جادوګري به د يو عالمي حکومت نصاب ګرځولے شي۔ (دا دوی دين دے؟)۔ ...... د يو داسې صورت د تشکيل ورکولو دپاره چه په هغې کښې به د يو فرد د آزادئ هيڅ تصور نهٔ وی، هيڅ قسم جمهوريت، اقتدارِ اعلیٰ او انساني حقوقو اجازت به نهٔ وی۔ قومي تفاخر او نسلي شناخت به ختم کړے شي او په عبوري دور کښې به د هغې ذکر هم قابلِ تعزير وی)۔ د هر شخص په ذهن کښې به دا عقيده مضبوطه کړے شي چه هغه (سړے وی که ښځه) د يو عالمي حکومت مخلوق دے او په هغه باندې به يو شناختي نمبر لګولے شي۔ دا شناختي نمبر به د برسلز او د بلجيم د نيټهو په کمپيوټر کښې محفوظ وی، او د عالمي حکومت په هره ايجنسي کښې به فوري طور سره د لاس لاندې وی۔

سي آئي اے، ايف بي آئي، رياستي او مقامي پوليس ايجنسيانې، آئي آر ايس، فيما، سوشل، سيکورټي وغيره مرکزي فائلونه به فراخه کولے شي او په هغې کښې به د خلقو د کوائف اندراج په امريکا کښې د تمامو وطني ذاتي ريکارډ په انداز کښې کيږي)۔

(ماخوذ از کتاب ابولبابہ شاہ منصور: دجال کون کب؟ بزبان اُردو ص (۱۴۵)۔

مزيد ليکي : دجال چه کله راښکاره شي بيا به ئې هم عام خلق نهٔ پيژني لکه څنګه چه د يهوديانو د فريب او دوهوکې ښکار خلق د هغوی ايجنټ جوړيدو سره هم د هغوی شيطاني مذهب نهٔ

پیژنی۔ دجال چه کله راښکاره شي نو هغه به د دجال کیدو دعویٰ نهٔ کوی او نهٔ به د یو نوی مذهب دعوت ورکوی بلکه هغه به د جدیدیت علمبردار او د انسانیت دعویدار جوړیدو سره راښکاره کیږی او یهودیان به خپل دا دروغجن مسیحا د ډیر دردمند او د انسانیت خیرخواه په شکل کښ پیش کوی۔ نو خلق به په هغه باندے اعتماد کوی ځکه چه هغوی ته به د دجالی مذهب په اصطلاحاتو باندے اعتماد خودلے شوے وی، خلق به مجبورتیا سره نهٔ بلکه متأثر کیدو سره به هغه طرف ته رامخکښ کیږی، د فری میسن د پلیټ فارم نه تیلك هم دا کارونه کیږی۔ خلق پدے تنظیم کښ او ددے په ذیلی ادارو (روټری کلب، لائنز کلب، شرائنز، مغربی این جی اُوز) کښ د مذهب نه بالاتر کیدو سره د انسانیت د خدمت دپاره شاملیږی۔ او بیا که هغوی ته روحانی اطمینان ملاویږی او که نهٔ -کوم سره چه دوی دهوکه شویدی - خو هغوی ته ددے شیطانی مذهب غیرِه ضرور ملاویږی۔

ددے وجه نه نبی ﷺ فرمائی : څوك چه د دجال خبر واوری نو هغه دِے ترے وړاندے شی ( او خوالـه دِے نهٔ راځی) قسم په الله ! انسان به ځان مؤمن گنړی (دا لفظ ډیر قابل غور دے۔ راقم) د هغهٔ خوا ته به راشی از بیا به د هغه په پیدا کړو شبهاتو کښ د هغه تابعداری کوی۔ (سنن ابی داود بروایت عمران بن حصین رضی الله عنه بسند صحیح)۔

(دجال کون ص ۱٤٦)

## دجال چرته دے؟

یهودي علماء (احبار ورهبان) د دجال اکبر د موجوده مَسُکن په باره کښ مختلف قسم متضاد خبرے کوي۔ کله وائي : دجال اکبر په قن یا قنم کښ دے۔ د (قنم) معنیٰ کله د مارغئ جالے سره کوي او کله د لرگي تابوت او کله په غره کښ غار سره۔ او کله وائي چه د دجال قید خانه د زمکے نه بهر طبقاتو کښ ده، او کله وائي زمکے ته نزدے ستورو کښ ده۔ کله وائي په خلاء کښ نا معلوم مقام دے۔ چه هغے ته جبل یا زَبَل وائي۔ د دوی په نیز دا د مسیح الدجال موجوده د اُوسیدو ځائے دے۔ چه هلته کښ د دوی نجات ورکونکے اُوسیږي۔ همدغه ځائے به د دجال د راښکاره کیدو په وخت راځي او په یروشلم (بیت المقدس) کښ به قائمیږي۔ د یهودو ے دینه علماء سوء په نیز اصل هیکل او قربان گاه هم دغه ځائے دے کوم ځائے چه المسیح الدجال پټ شویدے۔

لیکن ددے تولو نه رشتیني خبره هغه ده چه د صادق او امین محمد عربي ﷺ د خولے نه راوتلے ده چه په هغے کښ د شك او شبهے هیڅ گنجائش نشته او هغه د مخکنو حدیثو نه واضح شویده چه دجال مشرق طرف ته دے او په یوه جزیره کښ دے۔ او د ملائکو په قید کښ دے۔ او د وخت نه مخکښ د تولو دنیا سیتهلائیتونه که هغه تلاش کوي نو نشي ئے معلومولے او که توله دنیا یهودیان راجمع شي او هغه راخلاصوي نو قبل الوقت ئے

نشی راخلاصولے۔

اُوس کہ د جزیرۃ العرب نہ مشرق طرف تہ اُوکتلے شی نو دوہ ځایونہ داسے دی چہ ھغہ د مغرب عیسایانو پہ نیز ھم (شیطانی سمندر) یا (شیطانی جزیرے) یا (د جھنم دروازہ) یادیږی۔ او ددے دوارو آخر سر د امریکے سرہ لګیږی۔

(۱) پہ مشرق بعید کښں د بحر الکاھل وران او غیر آباد جزیرے راځی ...... د ھغے نہ د ګیرچاپیرہ ژورو او یرونکو اُوبو نوم (شیطانی سمندر) دے۔ دا د جاپان جنوب مشرقی او جزائر ماریانہ تہ نزدے دے۔ او د سوچ خبرہ دا دہ چہ ھغہ طرف تہ ھیڅ اسلامی ملك نشتہ۔ او بحر الکاھل ھغہ سمندر دے چہ د ھغہ پہ مقام کښں (ماریانہ تړینچ) د دنیا ژور ترین ځائے دے چہ د ھغے پہ تَل کښں د اُور خوفناکے شعلے راپورتہ کیږی، او پہ ھغے کښں د اُوبو لاندے زلزلے راځی او د ھغے یوہ حصہ د شیطانی سمندر پہ نوم سرہ مشھورہ دہ۔

(۲) دویم : د بحر الکاھل پہ دویم طرف امریکا دہ۔ امریکے تہ نزدے سمندر کښں داسے تکوینی خطہ دہ چہ د ھغے متعلق عجیب او غریبے قصے مشھورے دی۔ چہ پہ ھغے کښں حقیقت کم او افسانہ زیاتہ دہ۔ حقیقت صرف دومرہ دے چہ دا شیطانی تکون دے۔ چہ جدید ترین طیارے او بحری جھازونہ دے خطے تہ داخل شی نو کار پریدی او چہ نزدے شی نو متأثرہ کیږی او ډیر جھازونہ ئے ډوب کړیدی او ځان تہ ئے راخکلی دی۔ پدے کښں اللہ تعالیٰ د

کشش ماده پیدا کړیده۔ (پدې خطه د سمندر کښ د غائبیدونکو جهازونو شواهد په کتاب "برمودا تکون" د عاصم عمر ص (٤٥) کښ تفصیلًا اُوګوره)۔

رسول الله ﷺ چه د دجال په باره کښ د کوم درې ځایونو نومونه اخستی دی چه په هغې کښ ئې د دوه ځایونو نفی او د یو ځائې تائید کړیدې چه په هغې کښ دجال تړلې شویدې په هغه درې وارو کښ د سمندر نوم راځي۔

او په یو حدیث د مسلم کښ راغلي دی، د جابر ؓ نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه فرمایل ئې : ابلیس خپل تخت په سمندر باندې اړدی، او خلقو لره په فتنه کښ اچولو دپاره خپل لښکر لیږی، څوك چه د هغه په لښکر کښ د ټولو نه زیات فتنه اچونکې وی هغه ابلیس ته د ټولو نه زیات نزدې وی) (مسلم)۔

امام نوویؒ د مسلم شریف شارح فرمائی : چه ددې نه مراد د ابلیس مرکز دې یعنی د ابلیس مرکز په سمندر کښ دې۔

ددې نه مونږ ته د دجال د مقام په معلومولو کښ مدد حاصلیږی، پدې طریقه چه دجال د ابلیس د لیندې لوئی کار آمد او زهریله غشې دې۔ د الله د الوهیت په مقابله کښ د دروغو الوهیت قائمولو دپاره د ابلیس د ټولو نه لویه وسله او د حربه دجال دې۔ ددې دواړو خپل مینځ کښ ملاقات او د شیطانی قوتونو د دجال سره پوره پوره امداد د احادیثو نه ثابت دې۔ نو پدې کښ هیڅ

تعجب نشته چه د ابلیس په مرکز کښې دجال تړلے شوے وی او الله تعالیٰ په شیطانی سمندر او شیطانی جزیرو کښې مقناطیسی کشش پیدا کړے وی او د هغے په ذریعه سره ئے د عام انسانانو نه پټ ساتلے وی۔

## حدیث د ابوامامه - رضی الله عنه :

پدے حدیث کښې د دجال په باره کښې ډیر تفصیل ذکر دے :
رسول الله ﷺ اُوفرمایل : اے خلقو ! کله نه چه الله تعالیٰ د آدم علیه السلام اولاد پیدا کړیدی هیڅ یوه فتنه د دجال د فتنې نه لویه نشته۔ الله چه کوم نبی رالیږلے دے نو هغه خپل امت د دجال نه یرولے دے۔ زه آخری نبی یم او تاسو آخری امت یئ، هغه به خامخا تاسو ته راوځی، که د هغه د راوتو په وخت کښې زه په تاسو کښې موجود یم نو زه به د هر مسلمان د طرف نه د هغه مخکښې جګړه کونکے یم او که هغه زما نه روستو شو نو هر انسان به د خپل طرف نه جګړه کونکے وی او زه د هر مسلمان دپاره د خپل ځان نه روستو الله تعالیٰ پریدم (چه هغه به ورسره مدد کوی او د دجال نه به ئے محفوظ ساتی : راقم) هغه به د شام او د عراق د یو کنلو نه راوځی او ښی اَو ګس (هر طرف) ته به د فساد دپاره ګرځی۔ اے د الله بندګانو ! اے خلقو ! مضبوط شئ، زه تاسو ته د هغه داسے صفات بیانوم چه ما نه مخکښې هیڅ نبی نهٔ دی بیان کړی۔ هغه به وائی : "زه ستاسو رب یم لیکن تاسو به خپل رب د مرګ نه مخکښې

یعنی په ژوند کښې نشئ لیدلې۔ دجال کانړے دے لیکن ستاسو رب داسے نهٔ دے۔ د هغه د دواړو سترګو ترمینځ به د (کافر) لفظ لیکلې شوے وی، دا به هر څوك لیکونکے او نهٔ لیکونکے لوستلې شی۔ د دجال یوه فتنه دا ده چه د هغه سره به جنت هم وی او جهنم هم۔ د هغه جنت په اصل کښې جهنم دے او د هغه جهنم په اصل کښې جنت دے۔ څوك چه د هغه د اُور په امتحان کښې پریوزی نو هغه دِے په الله تعالیٰ پناه طلب کړی۔ او د سورة کهف ابتدائی آیتونه دِے تلاوت کړی۔ د هغه یوه فتنه دا ده چه هغه به یو بانډیچی ته اُووائی: "که زه ستا مور او پلار راژوندی کړم نو آیا ته به زما د رب کیدو ګواهی ورکړے؟ هغه به اُووائی: "آو،" بیا به شیطان د هغه د مور او پلار په شکل کښې د هغه مخے ته اُودریږی۔ هغوی به اُووائی: اے زما څویه! دده (دجال) تابعداری اُوکړه، دا ستا رب دے۔

د هغه یوه فتنه به دا هم وی چه هغه به په یو انسان باندے قادر شی او هغه به قتل کړی بیا به هغه په آرے سره دوه ټکړے څیری کړی، بیا به اُووائی: زما دے بنده ته ګوری، زه به دا دوباره ژوندے کوم، لیکن هغه به بیا هم وائی چه زما نه سویٰ ددهٔ دپاره رب شته۔ نو الله به هغه لره دوباره راژوندے کړی او دا خبیث (دجال) به ورته اُووائی: ستا رب څوك دے؟ هغه بنده به اُووائی چه زما رب خو الله دے، او ته د الله دشمن ئے، ته دجال ئے۔ قسم په الله! ماته ستا په باره کښې نن ورځ دومره بصیرت حاصل شو چه هغومره هیڅ

کله نۀ وو۔

د هغه یوه فتنه به دا هم وی چه هغه به آسمان ته د باران کولو حکم اُوکړی نو هغه به باران اُووروی، هغه به زمکے ته د گیا هګانو (فصلونو) زرغونولو حکم اُوکړی نو زمکه به رازرغونول اُوکړی۔

د هغه یوه فتنه دا هم ده چه هغه به په یوه قبیله ورتیر شی نو هغوی به ددۀ تکذیب اُوکړی (یعنی دروغجن به ئے اُوګنړی) نو د هغوی ټول څریدونکی حیوانات به هلاك شی او یوے بلے قبیلے باندے به تیر شی چه هغوی به ددۀ تصدیق اُوکړی نو هغه به آسمان ته حکم اُوکړی چه باران اُوکړی نو هغه به باران شروع کړی او زمکے ته به حکم اُوکړی چه گیاه گانے رازرغون کړی نو هغه به گیاه گانے رازرغونے کړی تردے چه د هغوی حیوانات به د دغه ورځے نه زیات چاق او تازه کیدل شروع شی، د هغوی تشی به اُوړده شی او د هغوی غولانزے به د پیو نه ډکے شی۔

هغه به د زمکے په هر شی باندے قدم ایږدی او په هغے باندے به غالبه کیږی سویٰ د مکے او مدینے نه، هغه چه ددے هرے لارے طرف ته راځی نو هلته به ملائك توره راویستلی ملاویږی تردے چه هغه به د یوے خوره ناکے زمکے په یو کنډو باندے چه سره شان زمکه به وی پړاؤ واچوی، نو مدینه به په خپل اُوسیدونکو باندے درے ځل اُورقیږی (یعنی زلزله به راشی)، نو په هغے کښ اُوسیدونکے هر منافق سړے او هره منافقه ښځه به رابهر شی او د هغه طرف ته به راشی، نو مدینه به هغه خبیث داسے لرے اُوشړی

لکه څنګه چه بنئ د اوسپنې خیرې لرې کوی، دے ورځې ته د نجات ورځ وئیلے کیږی. تپوس اوشو چه په هغه ورځو کښې به عرب چرته وی؟ نبی ﷺ اوفرمایل: په هغه ورځو کښې به (عرب) لږ وی.

یو صالح (نیك) مسلمان سړے به امام وی، په کوم وخت چه د هغوی امام مخکښې کیدو سره هغوی ته د سحر مونځ ورکوی نو په همغه سحر به عیسی ابن مریم علیه السلام راکوز شی. نو هغه به شا بیرته (واپس) راشی دے دپاره چه عیسی علیه السلام مخکښې شی مونځ ورکړی. عیسی علیه السلام به دواړه لاسونه د هغه په اوګو باندے کیدی او ورته به اووائی: ته مخکښې شه تهٔ مونځ ورکړه ځکه چه ددے مونځ اقامت تا دپاره شویدے. نو دوی ته به د دوی امام (یعنی مهدی) مونځ ورکړی، کله چه هغه امام لاړ شی (یا سلام اوګرځوی) نو عیسی علیه السلام به اووائی: دروازه کولاوه کړئ، دروازه به کولاوه شی، د دروازے نه اخوا به دجال د اوویا (۷۰۰۰) زره یهودیانو سره موجود وی چه په هغوی کښې به د هر یو ، ه تیره توره وی، او ګول څادر به وی، کله چه دجال عیسی علیه السلام لره وینی نو داسے به ویلی کیږی لکه څنګه چه مالګه په اوبو کښې ویلی کیږی او په تیخته به شروع شی. (او عیسی علیه السلام به ورته وائی: زه به تا ته یو داسے ګوزار درکوم چه ته ما نه نشے خلاصیدے) نو عیسی علیه السلام به دجال د لُد په شرقی دروازے باندے مونده کړی او هم هلته به ئے قتل کړی. نو بس الله تعالیٰ به یهودیانو ته شکست

ورکړی، د الله د مخلوق نه چه یهودی په هرشی پناه اخلی نو هغه به آواز کوی برابره ده که کانړے وی او که ونه وی او که دیوال وی، یا کوم حیوان وی سویٰ د غرقد ونے نه ځکه چه دا د یهویانو ونه ده، صرف هغه به خبرے نهٔ کوی۔ نور هر شے به داسے وائی : اے د الله بنده مسلمانه ! دا یهودی دے، راشه ! دا قتل کړه۔

(نبی ﷺ فرمائی) عیسی ﷺ به زما په امت کښ یو انصاف دار فیصله کونکے او عادل امام وی، هغه به صلیب ماتوی، خنزیر به ذبح کوی، جزیه به ختموی، زکوٰة به معاف کوی۔ نو څوك به د ګډو بیزو او اُوښانو پسے (د زکوة راټولو دپاره) نهٔ لیږی۔ او بغض او کینه به ختمه شی، د هر زهریله حیوان زهر به اُوویستلے شی تردے چه یو ماشوم به د مار په خوله کښ خپل لاس ورکوی نو هغه به ورته هیڅ نقصان نشی رسولے، یوه ماشومه به زمری ته تکلیف رسوی لیکن هغه به ورته هیڅ تکلیف نشی رسولے

شرمخ به په ګډوبیزو کښ داسے وی لکه چه دا ئے (حفاظت کونکے) سپے دے، او ټوله زمکه به د اسلام (یا صلح او امن) نه داسے ډکه شی لکه څنګه چه لوښے د اُوبو نه ډکیږی، د اتفاق او اتحاد دور به وی، د الله نه سویٰ به د هیچا عبادت نهٔ کیږی۔ جنګ به خپل سامان ګوزار کړی، قریش به خپل حکومت واخلی او زمکه به د سپینو زرو د فرش په شان شی۔ ددے نه به هغه ګیاه ګانے راټو کیږی کوم چه د آدم ﷺ په وخت کښ راټو کیدلے۔ تردے چه خلق به د انګور یو غونچك خوری نو په هغے به مړیږی او

خلق به د یو انار نه خوراك اُوکړی نو د هغوی خیته به ډکیږی، او غویا به په دومره دومره پیسو ملاویږی او د آسونو قیمت به یو څو روپۍ وی۔

د دجال نه مخکښ به دری سخت کلونه وی چه په هغې کښ به خلق په سخته لوږه کښ اخته کیږی۔ الله تعالیٰ به په اول کال کښ آسمان ته حکم اُوکړی چه یوه حصه باران بند کړه، او زمکې ته به حکم ورکړی چه یوه حصه گیاه گانې بندې کړه، بیا په دویم کاله به آسمان ته حکم اُوکړی چه دوه برخې باران بند کړه او زمکې ته به حکم اُوکړی چه دوه برخې گیاه گانې بندې کړه، بیا به دریم کال آسمان ته حکم اُوکړی چه ټول بارانونه بند کړه، نو یو څاڅکی به هم نهٔ راتویږی او زمکې ته به حکم اُوکړی چه ټولې گیاه گانې بندې کړه نو هیڅ شینکی به نهٔ راززغونیږی۔ کورنی څاروی به باقی نهٔ پاتې کیږی سویٰ د هغه نه چه الله ئې بچ اُوساتی۔ تپوس اُوشو : پدې ورځو کښ به خلق څنگه ژوندی پاتې کیږی ؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل : په تهلیل، تکبیر او تحمید سره۔دا به دوی ته د خوراك په ځائې کار ورکوی۔ (یعنی لا اله الا الله، الله اکبر الحمد لله به وائی او پدې سره به مړیږی لکه د جنتیانو په شان : راقم)

(ابن ماجه کتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عیسی ابن مریم الخ (٤٠٧٧) عبد الله بن احمد فی السنة (١٣٩/١٣٨) طبرانی کبیر (٧٦٤٥/٨) وصححه الالبانی فی قصة المسیح الدجال (ص)

دا روایت اگرکه پدې سند ضعیف دې لیکن د قوسینو نه علاوه

الفاظ تول په صحیح احادیثو کښې جدا جدا ثابت دی لکه دا خبره شیخ البانیؒ کړیده۔ اُوګوره قصة المسیح الدجال)

**فائده** : ددې حدیث نه دا ثابته شوه چه دجال به د عیسی علیه السلام په لاس وژلے شی او په باب اللد کښې به وژلے شی۔

لد په فلسطین کښې یو ښار دے او بیت المقدس ته نزدے دے، هلته یو لوئی ګیټ جوړ شویدے باب اللد (یعنی د لُد دروازه) ورته وئیلے شی۔ په هغې باندې د اسرائیلو انتظامیے لیکلی دی : [هُنَا يَخْرُجُ مَلِكُ السَّلَامِ] (د سلامتیا بادشاه (دجال) به دلته راښکاره کیږی)۔ دا خو د دوی خیالات دی چه دجال به مونږ ته سلامتیا راکوی لیکن حقیقت حال دا دے چه دا د دجال او د هغه د ملګرو د هلاکت ځائے دے څنګه چه زمونږ خوږ نبی صادق او امین صلی الله علیه وسلم وئیلی دی۔

## د یو مسلمان او د دجال مقابله :

ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی : رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل : دجال به راوځی نو هغه طرف ته به د ایمان والو نه یو سړے رامتوجه شی نو هغه سره به مسالح الدجال (یعنی د دجال څو کیداران او سرحدات ساتونکی وسلو والا) ملاؤ شی، ورته اُوبه وائی چرته دې اراده ده ؟ نو دا به ورته اُووائی : زما اراده ده هغه کس ته چه راوتلے دے (یعنی دجال) نو دوی به هغه ته اُووائی : آیا ته زمونږ په رب باندې ایمان نهٔ لرې ؟ نو هغه به اُووائی چه زمونږ په

رب بانـدے پتـوالے نشتـه۔ نـو دوی بـه اُووائی : قتل ئے کړئ نو په هغـوی کښ بـه بـعض بعضو ته اُووائی : آیا تاسو خپل رب نهٔ ئے منـع کړی چه د هغه نه مخکښ به څوك نهٔ قتل کوئ ؟ (نبی ﷺ فـرمائی ) : نو دوی به ئے دجال ته بوځی، کله چه د مؤمن سړی نظر پرے اُولګی نـو آواز بـه اُوکـړی : اے خلـقو ! دا هغه دجال دے چه مـونږ تـه رسـول الله ﷺ ذکـر کـړیـدے (بل روایت کښ دی دا هغه دروغـجـن دجـال دے) نـو دجـال بـه ددهٔ په باره کښ حکم اُوکړی نو هغه به په خیټه څملولے شی (یعنی پرمخے)، دجال به حکم اُوکړی چه دا اُووهئ او په خیټه ئے څملوئ نو په وهلو وهلو سره به د هغه ملا او خیټه فراخه کړے شی۔ بیا به ورته دجال اُووائی : آیا ته په ما بـانـدے ایـمـان راوړے ؟ نـو دا سړے بـه ورتـه اُووائی : تـه دروغجن مسیـح ئے۔ نـو بیـا بـه دجـال حکم اُوکړی نو په مینـځ د سر کښ به ورتـه آره کیـخـودلے شـی او پـه میـنـځ به ئے دوه ټکړے کړی، بیا به دجـال د هـغـه دواړه ټـکـړو پـه مـابیـن کښ روان شی، بیا به هغه ته اُووائـی : راپـاځـه، نـو هـغـه به راپورته شی نیغه به اُودریږی۔ بیابه ورتـه اُووائی: آیا ته په ما ایمان راوړے ؟ نو دا به ورته اُووائی : زما په تـا کـښ اُوس نـور هـم بـصیـرت (هوښیارتیا) زیاته شوه۔ (نبی ﷺ فـرمـائـی:) بیـا بـه دا سړے آواز اُوکـړی : اے خـلقو ! دا دجال زما نه روستـو پـه هیـڅـا بانـدے داسے کار هیڅرے نشی کولے، نو بیا به ئے دجـال راونیـسـی دے دپاره چه ذبح ئے کړی نو د هغه د څټ او مرئ تـرمیـنـځ بـه تـانبـه واچـوی نـو بیا به هغه باندے هیڅ طاقت نشی

لرلے۔نو بیا بہ ئے د لاسونو او دواړو خپو نه اُونیسی او (هوا ته به ئے) گوزار کړی۔نو خلق به دا گمان اُوکړی چه کنے اُور ته ئے گوزار کړو او حال دا چه هغه به جنت کښ گوزار شوے وی۔ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل: دا شخص به د رب العالمین په نیز د ټولو خلقو نه لوئی گواهی والا وی)۔

(صحیح مسلم: ۲۰۰/۸) قصة المسیح الدجال ص (۸۰)

## د دجال د فتنے نه د بچاؤ علاجونه

هرکله چه د دجال فتنه ډیره عظیمه فتنه ده نو دا سوال پیدا کیږی چه په داسے دور کښ مسلمانان به د هغه د فتنے نه څنگه بچ کیږی؟، کوم کارونه دی چه انسان هغه اختیار کړی او په هغے سره ددے فتنو نه بچ شی ؟۔

نو زمونږ خیر خواه رشتینی نبی کریم ﷺ په خپلو رشتینی احادیثو کښ مونږ ته ددے خطرناك دور په باره کښ څه نصیحتونه کړیدی چه په هغے باندے انسان عمل اُوکړی نو دا به د هغه دپاره بهترین ډهال او د دجالی فتنو نه یوه قلعه جوړه شی۔ نو هغه اسباب او علاجونه چه احادیثو کښ اُوکتلے شی، ډیر زیات دی بعض دا دی :

۱- یو علاج مخکښ حدیثونو نه دا معلوم شو چه رسول الله ﷺ فرمائی: ((څوك چه په تاسو کښ دجال اُووینی نو په هغه باندے دے د سورة الکهف ابتدائی آیتونه تلاوت کړی))۔ (مسلم

۲۹۳۷) او يو بل روايت كښې دى : [مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ سُوْرَةِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ] [مسلم : ۸۰۹]

(څوك چه د سورة الكهف ابتدائى لس آيتونه ياد كړى نو هغه به د دجال د فتنې نه محفوظ شى)۔

(۲) د عمران بن حصين رضی الله عنه په حديث كښې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى : [مَنْ سَمِعَ بِالدَّجَّالِ فَلْيَنْأَ عَنْهُ] [ابوداود : ٤٣١٩]

(څوك چه د دجال په باره كښې واورى نو هغه نه دې وړاندې شى)۔

ددې نه دا علاج معلوميږى چه د دجال نه د بچ كيدو يوه ذريعه دا ده چه د دجال په قبضه كښې كوم ملكونه او د دجالى حكومتونو د اثر لاندې علاقو نه هجرت اُوكړې شى، غرونو، شړو او باندو ته تلل پكار دى او د نوى دنيا د شيطانى سهولتونو نه دې ځان اُوساتلې شى او داسې ځايونو ته دې تلل اُوشى چه هلته د دجال د دروغجن ربوبيت طاقت نۀ وى۔ ورنه د ايمان حفاظت به ډير مشكل وى۔

(۳) عائشه رضى الله عنها فرمائى : رسول الله ﷺ به په مانځه كښې دا دعا كوله : [اَللّٰهُمَّ اِنِّىٓ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ، اَللّٰهُمَّ اِنِّىٓ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ] [بخارى كتاب الاذان : ۸۳۲]

(اې الله ! زه په تا پورې د قبر د عذاب نه پناه غواړم او په تا پورې د فتنې د مسيح الدجال نه پناه غواړم او په تا پورې د ژوند او د مرگ د فتنې نه پناه غواړم، اې الله ! زه په تا پورې د گناه او د تاوان نه پناه

غـوارم)۔ دا دعـاء پـه مـختلفو الفاظ راغلی ده او ټول الفاظ صحیح دی۔

طاوس رحمه الله خپل ځوی نه تپوس اُوکړو چه تا په مانځه کښې دا دعـاء اُووئیلـه ؟ نـو هـغـه اُووئیل : نهٔ، نو ورته ئے حکم اُوکړو چه ورشه دوباره مونځ اُوکړه۔ (صحیح مسلم)

دا دومره قیمتی دعـاء ده، او رسـول الله ﷺ ددے پـه وئیلو امر فـرمائیلے دے، ددے وجـه نـه د بـعـض عـلـماؤ په نیز باندے دا دعاء خصوصی طور سره لوستل واجب دی۔ پدے سره د دجال ذ فتنے نه پوره بچ والے راځی۔

(٤) د دجـال دروغـجن کـول (په هغه باندے تصدیق نهٔ کول) او په الله باندے کامل توکل کول :

مـخـکـښې پـه روایـت د هشام بن عامر کښې تیر شو چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [فَـمَنْ قَالَ اَنْتَ رَبِّیْ افْتُتِنَ، وَمَنْ قَالَ : کَذَبْتَ، رَبِّیَ اللّٰهُ عَلَیْهِ تَـوَکَّـلْتُ فَلَا یَضُرُّهٗ] [مسند احمد ٢٨/٤] (دجال تـه مـخامخ کیدونکو خـلقو نه) چه څوك اُووائی ته زما رب ئے نو هغه په فتنه کښې واقع شـو او چا چـه اُووئیـل چه ته دروغجن ئے، زما رب الله دے، په هغه بـانـدے زمـا اعـتـمـاد او تـوکـل دے نـو دجال به هغه ته هیڅ نقصان نشی رسولے)۔

ددے نـه دا معلومه شوه چه د دجال د فتنے نه د بچ کیدو طریقه دا ده چـه پـه الله بـانـدے تـوکـل کـول او پـه پوره عزم او حوصلے سره د دجال ښـکـاره مـخـالـفـت او بغاوت کول او د هغه په خلاف میدان

جنگ ته راوتل۔

(۵) په مکه او مدینه کښې اُوسیدل ځکه چه دجال باندے دے دواړو ته داخلیدل حرام دی۔ لکه چه مخکښې احادیثو نه دا خبره واضحه شوه۔

(٦) د مخکښې نه دا دعاء کول چه اے الله ! د دجال او د هغه نه د مخکښې راتلونکو او موجوده ټولو فتنو نه مونږ اوزمونږ اولاد او ټول مسلمانان محفوظ او بچ اُوساتے !، دا دعاء همیشه کول پکار دی نو د کوم شی چه نه انسان یریږی او بیا پکښې د الله نه مدد غواړی نو الله تعالیٰ ورله حفاظت ورکوی۔او د اسلام او د حق والو د ترقئ او د حفاظت او د باطل والو د عذابونو نه د بچاؤ دعاگانے کول۔

وبالله التوفیق وصلی الله علی نبینا محمد وعلی آله وصحبه وسلم

وکتبه : ابوزهیر سیف الله غفرله لیلة الخمیس بشاور شیخ آباد

[ ۱٤۳۱ هـ ۔/جمادی الاولیٰ ۲٤ موافق : ۲۰۱۰/٥/٥ ]۔

OOOOOOOOO